# احمد شاه بابا افغان

## د ستر احمدشاه بابا د اتل ژوند تاریخ

مؤلف: میر غلام محمد غبار

ژباړن: امین الله دریځ



د کتاب پېژندګلوی:

د کتاب نوم: احمدشاه بابا افغان

مولف : میرغلام محمد غبار

ژباړن : امین الله «دریځ»

کمپوزر : مجیب الله

خپرونکی: دانش کتابخانه، قصه خوانی، ډهکی نعلبندی

فون: 2564513

د چاپ شمېر: ۱۰۰۰ توک

د چاپ کال : قوس ۱۳۷۷ هـ ش





بسم الله الرحمن الرحيم



# ډالۍ

افغان توريالي ژوبل ولس ته چې د تاريخ په بهير کې
څو پلا د خپلې تېرې توري په تور، تور سکور شو.

# فهرست

# د ژباړن یادښت

تاریخ د برمیال و پرتمین ژوندانه پر لوري د انساني ټولنو د سیرو او تودو هڅو زیږنده پایله ده.

انساني پرګنې د ژوندانه په بهیر کې د تاریخ د خوځنده ځواک په توګه ځان څرګندوي او خپل ازمیښتونه، پوهه او بریاوې له خپلو ټکرونو، تېروتنو او ماتیو سره د همدغه تاریخ له لارې خپلو راتلونکیو کولونو ته د ارزښتمنو ژوند ښوونو په توګه یادګار پرېږدي چې هغه په سمه توګه د ګاندې په ټاکلو کې ګټه ترې واخلي او د ناټاکلي او ناڅرګندې بشپړتیا پر لورې پر له پسې ګامونه ګرندي کړي. په دې توګه، تاریخ د فرهنګ د پرمختلوني بهیر هنداره هم ګڼلای شو. پخوا چا تاریخ ته د پوې په لړ کې ځای نه ورکاوه؛ د ټولنیز پرمختګ په بهیر کې یې د هغه ارزښت نه پېژانده او د پخوانیو انسانانو هغه زړې کیسې یې ګڼلې چې یوازې یې د وزګارتیا او دمې په شېبو کې د اورېدو وړ بللې، خو ټولنیز شعور د دغه ټکي منلو ته چمتو نه و چې دوی د ژوندانه په هر ګام و پړاو کې د تاریخ لارښوونو ته اړ دي او له هغه سره اړه لري.

وروسته چې د ژوندانه په بهلا، بهلو اړخونو کې انساني اند ځواک وده وموندله؛ د ژوندانه لمن وغځېده او د چاپېریال په اړه ژورې پوهې ته اړتیا رامنځته شوه؛ تاریخ هم د پام وړ وګرځېد؛ ارزښت یې راڅرګند شو او تر ټاکلیو پوهنیزو آرونو لاندې یې راټولونه پیل شوه.

په ځانګړې توګه، د لرغوني یونان په ځلاند پېر کې چې فلسفې او پوهې بازار تود شو او په هره څانګه کې پوهان را ډګرته شول، تاریخ ته هم هراړخیز کار پیل او د نورو پوهنو پر لیکه ودرول شو. تاریخ ته د «هېرودوت» هاند وهڅې، لکه هندسې ته د «اکلېدوس» د اندو هڅو غوندې ارزښتناکې او اغېزناکې وې، نوموړي پوه د خپلو څېړنو په ترڅ کې تاریخ ته د بشر پوهنې د یوې ستري څانګې په توګه آر و لاسوند وټاکلې شول. همدا آرو لاسوندو وو چې تاریخ یې له زړو کیسو او اسطورو نه رابېل کړ او د یوې ځانګړې پوهې په توګه یې وپېژاند.

د منځنیو پېړیو په پای کې چې د ژوندانه مراوې ونې بیانوې را واخیسته او بشر د

پرمختګ وبیا راژوندي کولو هوډ و تابیا ونیوه؛ تر هرڅه لومړی همدا تاریخ و چې دڅلاندې ډیوې په توګه یې د «رنسانس» مخې ته د لرغوني یونان پرلوري د منځنیو پېړیو تیاره او کاږه واټونه ورونړول او د ننني نړیوال پرمختګ ارت ډګرونه یې پرانیستل.

د رنسانس له پیله راپردېخوا یوځل بیا د تاریخ فرهنګي ارزښت وځلېد او چټکه وده یې وموندله. په دې توګه، د شلمې پېړۍ ګړندی ساینسي او تکنالوژیک پرمختګ چې د توکیزې ژبړندویۍ له پلوه یې د بشري ژوندانه بڼه نوې کړه، په ناڅاپي توګه رامنځته شوی نه دی؛ همدا تاریخ و چې څو زره کلنه انساني پوهه یې وپېیله؛ ساینس یې وزېږاوه او په پای کې بشر د دې وړ شو چې سپوږمۍ ته پر ټګ سربېره د مریخ تر شا وخوا هم د ګرځېدو جوګه شي، ځکه نو بېځایه نه ده چې تاریخ «د ساینس پلار» وګڼل شي.

نن چې بشر د لانویو پرمختګونو پر لار ولوري روان دی، تر هر بل مهاله یې تاریخ ته ژوره اړتیا لیدل کېږي، په ځانګړې توګه چې غواړي د پنځ (طبیعت) د سمون ترڅنګ د خپل ژوندانه لوري، لودن ته هم له نویو مهالنیو غوښتنو سر سمه نوې بڼه ورکړي او انساني اخلاقي ارزښتونه د سپکاوي او اسکېرنې له ګړنګ وژغوري، نو بیا یې تاریخ ولولي؛ پرې پوه شي او ګانده له او سمهال سره د تېرمهال د ازمېښتونو، تودو، سړو، بریو، ماتیو او تېروتنو منطقي پیوندونو له پام کې نیولو سره داسې وټرې چې بشریت پرځان باندې د ویرونو، ناتارونو او زره بوګنوونکیو پېښو د ازمېښت بیا راوستو ته اړ نه شي، خو د سوکالۍ، برم و برتم «آغلي ښار» هرو، مرو ودان کړای شي. په دې اړه افغان ولس تر هر بل چا ډېر د آغلي ښارودانۍ ته اړتیا لري، ځکه چې نن د پرتمین و ویاړلي تاریخ پر لرلو سربېره هم د نړیوال چټک پرمختګ پرواټ تر ټولو وروستی پاتې شوی او د ژوندانه په ترخو او تیارو شپو کې شپې او ورځې تېروي.

که افغان مېړنی ولس چې پر هر ډګر یې د توري برېښنا د ښنه غونې ځیږ کړې، یوځل بیا خپلو پخوانیو ویاړونو او سرښندنو ته ځیر شو، نو دا مټره لري چې نن هم د ژوندانه په ښلا، ښلو فرهنګي، اقتصادي، ټولنېزو او سیاسي ډګرونو کې د سیالانو سیال شي او د یوه سوبمن ملت په توګه لومړی له پرمختللې نړۍ سره اوږه سمه او بیا یې ترې جګه هم کړای شي. ددې سپېڅلې موخې د بشپړاوي یوه لار دا ده چې ټول د خپل ملي تاریخ رېښتیني اتلان، لوړو ژور پړاوونه او د هغوی آر لاملونه وپېژنو.

زمونږ د ملي تاریخ پر هسک داسې ګڼ شمېر ځلاند ستوري ځلېږي چې هر یوه په خپل وار د تیارو زړه څیرلی او د افغان ولس په ملتیا یې د سیاسي ژوندانه لار له ورکېدو

نه ژغورلې ده. خو په دغه لړ کې ښاغلی «احمدشاه بابا» د اورد مهالې کرکجنې تورې شپې په گوگل کې د سوبې او برم د سپېڅلي سباوون هغه رون لمر دی چې په خپلو وړانگو یې زرگونه کلونه وروسته بیا د برمیالی «آریانا» تیاره او هېر شوي گوټونه ورېنول او کنگل وهلي زړونه یې د نوي ژوندانه د پسرلنیو گلو رینو شببو د بیا پیلولو پرلورې تاوده کړل. احمدشاه بابا د افغان ولس هغه مشر دی چې د مشرتابه دريې سپېڅلي آزونه (پوهه، مینه، بلهاري) یې د سیاسي ژوندانه ستری ځانگړ تیاوې، وې او د خپلو ویاړلیو هڅو تر پایه یې «د هاغه مهال له نړیوال سیاسي، جغرافیایي دود و او تاسره سم» یوه شببه هم خپل سربښندوی ولس چې دده په لاربښوونه یې بې ساري اتلولی او سربښندونې وکړې، هېر نه کړ، ځکه خو، همدومره چې احمدشاه بابا ته خپل سرسپارلی ولس گران و، ولس ته هم دی دمانیز پلار غوندې ښکارېده او د زړه له کومې یې درناوی کاوه او کوي یې.

دا د هر افغان ملي دنده ده چې د احمدشاه بابا شخصیت، د هغه د منځته راتگ سیاسي چاپېریال او د هغه د پرله پسې هڅو او کړاوونو زېږنده پایلې په ژورو او هراړخیز ډول وپېژني او د ملي یووالي د سمبول په توگه یې د گاندې له ځانگړ تیاوو سره سم د سیاسي ژوندانه پر ډگر د لارې مشال وگڼي.

د احمدشاه بابا په اړه کورنیو او بهرنیو تاریخپوهانو گڼ شمېر کتابونه لیکلي چې هریو یې پرخپل ځای تاکلی ارزښت لري او د لوستلو وړ دي، خو هغه کتاب چې له نن نه (۶۰) کاله پخوا د هېواد تکړه او نومیالي تاریخپوه ښاغلي اروابښاد میرغلام محمد «غبار» د «احمدشاه بابا» په نامه لیکلی و، زما دېر خوښ شو او پرېکړه مې وکړه چې د ټولو پښتنو او پښتو ویونکیو له پاره یې وژباړم، دا د ی د لوی خدای په مرسته اوس دا کوچنی هڅه تر بشپړېدو وروسته ستاسې مخې ته ایښې، هیله ده چې په لوستو یې مانیزه گټه ترې واخلئ او د احمدشاه بابا د لاښې او ژورې پېژندنې په لار کې مو مرستندویه شي.

په پای کې له خپل گران ملگري افغان فرهنگ مین ښاغلي اسدالله «ساپی» نه مننه کوم چې د «دانش کتاب پلورځي» په لگښت یې ددغه کتاب چاپولو ته تندي ورین او یوځل بیا یې د گران افغانستان له ویاړونو سره خپله اورنۍ مینه زبات کړه.

د ودان افغانستان په هیله

ا «دریځ»

تله، ۱۳۷۷ کال

# د لیکوال سریزه

افغان احمدشاه «بابا» پر (۱۲۳۵ سپوږمیز = ۱۷۲۲ زیږدی) کال په هرات ښار کې وزیږید، د (۱۱۶۰ ـ س پرشوال = د ۱۷۴۷ ز پر اکتوبر) په کندهار ښار کې د افغانستان پر پاچاهۍ وټاکل شو او د (۱۱۸۶ س پر رجب = ۱۷۷۳ ز پر سپتامبر) په توبه غر کې له نړۍ نه لاړ.

د افغانستان د ملت په سیاسي ژوندانه کې د احمدشاه بابا اندونو او کړنو ارزښتمن اغېز لاره، دی د هېواد د تاریخي بهیر یې له سترو نومیالیو څخه دی چې د ژوندانه او هڅو زده کړه یې د هر افغان ملي دنده ګڼل کیږي.

د احمدشاه ارزښت سربېره پر دې چې یو افغان پاچاو، له دغه اړخه د پر غوره دی چې دی تر دوو پېړیو ویجاړتیا او د افغانستان تر سیاسي شنني (د افغانستان د تیموریانو د دولت تر ړنګېدو او پر لسمه هجري پېړۍ د بخارا، پارس و هند د واکمنو په لاسونو د هېواد وېش) وروسته د ځواکمن دولت بنسټ ایښوونکی او د افغانستان د پخوانۍ لوړتیا نوی کوونکی دي.

تر احمدشاه وړاندې په کندهار و هرات کې د هوتکیانو او ابدالیانو نومیالیو هم د افغانستان خپلواکي ځلولې او هم هوتکیانو د پارس هېواد نیولی، خو دوی په کورنیو چارو کې د ټول هېواد د سیاسي اداري پریووالي بریالي شوي نه دي. خو احمدشاه

هماغومره چې د پوهې بريوله پلوه ستر افغان پاچاه دی، تر دې لا ډېر د هغو خدمتونو لا امله چې د افغانستان د ملي او سياسي يووالي په لار کې يې وکړل؛ د درناوي ور گڼل کيږي، نو دا به يوه نيمگړتياوي چې د احمدشاه هېوادوال د هغه د ژوندانه تاريخ د عباسي خليفه القاهر يا پرانسوي څلورم هانري تر ژوند پښښو لږ وپېژني، هغه هم پر داسې مهال چې گران هېواد د افغانستان د زلمي او پوه پاچاه اعليحضرت محمد ظاهرشاه اطال الله بقاءه د پوهې او ادب پالنې تر سيوري لاندې د پرمختگ خواته ځي.

د ۱۳۱۷ لمريز کال پر مني د کندهار ولايت نايب الحکومه او پوځي کوماندان والا حضرت «سردار محمد داود خان» د احمدشاه بابا د غزلونو ديوان «چې تر اوسه لا سي ليکنو په بڼه و» د چاپولو تابيا وکړه او ماته يې وويل چې د هاغه لوی پاچاه ژوند پېښې د هغه د شعرونو د ديوان د سريزې په توگه وليکم.

سره له دې چې روغ نه وم او د دغه پتمن کار له پاره د پلټنې او لوستنې ور کتابتون و کتابونه هم نه وو، بيا مې هم د دې سکالو د ارزښت له مخې زړه ونيو او په بې وزلی کې مې هغه څه چې کړای شول؛ بشپړ کړل.

داچې د دغه کتاب پرېروالي «څلوربرخې، اته ديرش څپرکي» د غزلي ديوان په سريزه کې د هغه د راوستو مخه نيوه نو د «احمدشاه بابا» په نامه د يوه ځانگړي کتاب په توگه چاپ و خپراوي ته وسپارل شو. (۱)

په پای کې د دغه ټکي يادول بې گټې نه دي چې د دغه کتاب په ليکلو کې زما له دود سره سم د هغو کتابونو او اخځونو چې نوم يې اخلم، لومړی ځل په لمن ليک کې د ليکوال نوم، کتاب، چاپځی، د چاپ نېټه او د مخونو شمېر راوړل کيږي او تر هغې وروسته د مخ يا متن په لمنليک کې هوازې د ليکوال يا کتاب د نامه په يادولو بسنه کيږي.

د ۱۳۱۷ ژمی - کندهار ښار

مير غلام محمد «غبار»

---

(۱) د احمدشاه آرغزليز ديوان د ښاغلي ليکوال عبدالحي خان حبيبي په بشپړه سريزه پر ۱۳۱۹ کال په کابل کې چاپ شو، ما چې مخکې د دغه کتاب نيولېک دوې ته وړ کړی او نوموړي هم د احمدشاه د زوکړې د نېټې، ځای، منگ، پلازناستې، ودانيو، نښان، اداري جوړښت او داسې نورو ځينې برخې او سرليکونه د «لوي احمدشاهٔ» د سريزې په (و-ط) مخونو کې ځايولي وو نو دا چې تر اوسه دغه کتاب چاپ شوی نه و، د غو اخځونو ته يې هم نغوته کړې نه وه، که نه دوی تل په خپلو ليکنو کې هرو، مرو د سرچينو او اخځونو يادنه کوي، نو درانه همکار د دغه کتاب د چاپيدو په ترڅ کې پر ماتېنگار وکړ چې اقتباس ته يې نغوته وکړم. هماغسې چې هغه ورور دنبا وله مخې دالار ښوونه وکړه، زه يې هم د وجدان له مخې په پلي کولو اړ شوم. «ليکوال»

# لومړۍ برخه

# لومړی څپرکی

## داحمدشاه نسب

احمدشاه د زمان خان زوی د دولت خان لمسی د سدوزیو له کوچني وند څخه دی چې د افغانستان د پښتنو د قبیلوي ویش له مخې د سړبنو ابدالیو د لویې څانگې اړوند دی.

دلته دد غه وندیز ویش سپړنه چې لومړی یې د کورنیو له نومونو نه سرچینه اخیستې او بیا قبیلې پرې نومول شوي چې هرې یوې څو وړې او سترې څانگې موندلی او په دې توگه یې د ملي ہوالي د ړنگېدو او د ویجاړتیا لار برابره کړې، سمدلاسه بې گټې او له دې څېړنې نه بهر ده.

خو د احمدشاه د نسب په اړه: یو شمېر لیکوالو چې غوښتي یې دي د پښتنو د نسب پوهنې په اړه د وغړېږي، هېښنده دروغجنې شجرې یې لیکلې، لکه یو چې د احمدشاه د نسب په اړه وایي: هغه د زمان زوی، د دولت زوی، د سرمست زوی، د شیرخان زوی، د

خواجه خضر زوی، د سدو زوی، د عمر زوی، د معروف زوی، د بهلول زوی، د کاني زوی، د بامي زوی، د حبیب زوی، د پوپل زوی، د زیرک زوی، د عیسی زوی، د ابدال زوی، د ترین زوی، د شرخبون زوی، د سړبن زوی، د قیس «عبدالرشید» زوی دی.[1]

دا وروستی د حضرت محمد (ص) هممهالي بولي چې په حجاز کې یې د اسلام دین ومانه او اوسني څو مېلیونه پښتانه یې له کوله دي.

بل پر دې هم نه سهېږي؛ د قیس عبدالرشید پلار پر پلار شمېرې او پر شپږ د پرشم هغه یې ملک ساول ته رسوي.[2]

ځیني لا د دغو شجرو د نومونو او ګڼو د تاکنې په اړه هم یوه خوله نه دي، څو نومونه یې له یوه ځایه لرې کړي او په بل کې یې ور د بر کړي دي.[3]

کېدای شي چې په دې اړه زموږ د لیکوالو غلو او مبالغې بهرني لیکوال هم تېرېوستي وي، لکه ښاغلی «ربورتي»[4] چې دغو کیسو ته غوږ نیولی او په هغه ځای کې چې د دې شجرې د نومیالیو نومونه اخلي، د «سدوخان» (د سدوزیو مشر نیکه) د زوکړې نېټه د نواب حافظ محبت خان د «تذکرة الملوک» و «ریاض المحبة» نومیو کتابونو پر بنسټ (۹٦۵) سپوږمیز کال ښيي او «ملک زیرک» د افغانستان د پاچاه شاه رخ (۸۰۷ - ۸۵۰ سپوږمیز) هممهالی ګڼي، دی په خپله اټکلوي چې ملک «ابدال» (د ابدالي پښتنو لوی نیکه) د شرخبون لمسی د افغانستان شاهنشاه «سلطان محمود غزنوي ۳۸۷ - ٤۲۱ سپوږمیز» هممهالي و او دغه اساطیري شرخبون هم د لومړۍ هجري پېړۍ په وروستۍ نیمایي کې د ثقفي حجاج هممهالی ګڼي.

خو د دغو ګروهو دروغجنوالی د سم اندیو پر وړاندې څرګند دی، ځکه چې که د دغو

---

(۱) کتلی شئ: «حیات افغاني» تاریخ، د محمد حیات خان لیکنه، د لاهور چاپ ۱۸٦۵ زېږدی کال، ۱۷-۱۱۹ مخونه.

(۲) کتلی شئ: «خورشید جهان» تاریخ، د شیرمحمد خان ګنډاپوري لیکنه، د لاهور چاپ ۱۸۹٤ زېږدی کال، ۱۷۰-۱۷۸ مخونه.

(۳) کتلی شئ: «تاریخ سلطاني» د سلطان محمد خان خالص لیکنه، د ببیی چاپ ۱۲۹۸ سپوږمیز کال، ۵۲-٦۸ مخونه، همدا راز «خصایل السعاده» د محمد سعادتخان لیکنه. د لکنهو چاپ ۱۸۸۵ زېږدی کال، ٤۵-۱٤٦ مخونه.

(٤) کتلی شئ: د پښتو ژبې د ویې پوهې او غوند له پوهې سریزه، د ملتان د کمېشنر مرستیال لفټنټ ایچ جي ربورتي لیکنه، د کلکتې چاپ ۱۸۵٦ زېږدی.

تاریخلیکونکیو او نسبپوهانو پر اند د هرو درېیو پلرونو له پاره یوه پېړۍ وټاکل شي، نو چې له احمدشاه نه یې تر قیس عبدالرشید پورې شل پلرونه شمېرلې، د ټولو له پاره اووه پېړۍ کېږي، په دې توګه تر احمدشاه پورته داسې ویلی شو چې ښایې ددې کیسې اتل «قیس» به پر پینځمه هجري پېړۍ ژوند کړی وي. بیا نو دا خپللاسې شجره له خپلو ټولو هغو څانګو او پانو سره چې وروپورې نښلولې یې دي له ولیو او جړونه د باد مخې ته د غورځولو ده.

زموږ د دارنګه تاریخونو نیمګړتیا پر دغه کیسه بز آر اړه نه لري، ستره نیمګړتیا دا ده چې د میاشتو او کلونو او تاریخي او جغرافیایي نښو په ټاکنه کې پرېښوونې، ګډونې او ناپامی شوي چې دا دواړه د تاریخپوهنې له کلکو او ځرګندو بنسټونو څخه ګڼل کېږي.

په هر ډول، بېرته د خبرې پیل ته راګرځو او وایو چې احمدشاه د زمان خان زوی او د دولت خان لمسی دی چې د پښتنو ابدالیو د سدوزیو پر څانګه پورې اړه لري.

# دويم څپرکی

## د احمدشاه نيکه

د احمدشاه نيکه «دولت خان» د دوولسمې هجري پېړۍ په پيل کې د کندهار د ابداليانو مشر و. هاغه مهال د افغانستان ملي مشران د هېواد په ختيزو، لويديزو او شمالي سيمو کې په رښتيني مانا د ملت واکمن وو او د پارس، هند و وزبکو حکومتونو هم ددوی يو ډول کورني خپلواکی ته درناوي لاره، تر دې چې د هغوي واکمنو ددغو مشرانو له منځگړتيا پرته له افغاني ملت سره اړيکي نه لرل، سلطان محمد څرگندوي چې: پارسي واکمنو تل د کندهار د ماليې راټولو په اړه له افغاني مشرانو سره اړيکي ساتل. (۱)

ښکاره ده چې د مشرانو دا واک د پرديو واکمنو نه خوښېده خو دا يې ازمېيلې وه چې له همدغه ډول چلند پرته يې په افغانستان تر ورته هېواد کې سياسي اغېز له گواښ سره مخامخېدونکی دي، ځکه چې افغانانو لړ موده وړاندې خپلواک تيموري دولت بايللی او د خپل سياسي واک دبيا گټلو په لټه کې وو.

د هند بابري دولت له دغه امله درون تاوان وگاله او د يوسفزيو (۲) د زړو رو

---

(۱) سلطاني، ٦٤ مخ

(۲) د «فرشته» تاريخ ليکوال «محمد قاسم» د جلال الدين اکبر د پېر د پېښو په پای کې د يوسفزيو افغانانو پر وړاندې د هغه د پوځي تاوانونو يادونه کوي، لکه د سوات و باجوړ په جگړو کې چې د هغه د وژل شويو شمېر اته زره ښيي.

مشرانو، پیر روښان[1] خوشال خان خټک[2] او د هغوی د وروستیو او نورو د بریدونو په لړ کې ډېر ژوبل شو.

---

(۱) پیر روښان (بایزید) د افغان عبدالله زوی او د وزیرستان د کانیګرم او سېدونکی دی. مور یې «بیبن» نومېده او په جلندر کې یې خپل دغه زوی وزېږاوه. روښان په کانیګرم کې د ملا پاینده تر لاس لاندې زده کړه وکړه؛ چې زلمی شو سمرکند ته لاړ او بېرته د هند پر لوري راستون شو. په جلندر کې یې له افغاني لودي پښتلي «شمسیې» سره واده وکړ او له ملا سلیمان کالنجري سره یې لیدنې وشوې. وروسته خپل هېواد ته راغی؛ له هغه ځایه جلال آباد او نورو ختیزو سیمو ته لاړ؛ پر افغانستان باندې یې د هندي مغولو د ښکېلاک پر وړاندې هڅې پیل او په پېښور کې یې د ښکاره جهاد جنډه پورته کړه. په پای کې د هغې جګړې په ترځ کې چې د کابل له مغولي نایب الحکومه «محسن خان» سره یې د جلال آباد ختیز لوري ته په تور راغه کې وکړه؛ ووژل شو او په اشنغر کې ښخ شو (د لسمې هجري پېړۍ پای).

پیر روښان پوه سیاسي مېړه و؛ په پښتو، پارسي، هندي او عربي ژبو یې لیکل کړای شول او خپلې ژوند پېښې یې په «حالنامه» نومې کتاب کې لیکلې دي. پیر روښان د یوه ځانګړي مذهب بنسټ اېښوونکی و چې ګروهې یې پر ۹٤۹ سپوږمیز کال ډېر پرمختګ وکړ.

د پیر روښان کول، لکه زوی یې «جلال الدین»، لمسي یې «احداد»، کړوسې یې «عبدالقادر» او کودې یې «کریم داد» ټول د هېواد د خپلواکۍ له پاره د اکبر، جهانګیر، شاهجهان او نورو پر وړاندې په مېړانه جګړې وکړې او پر ته له «عبدالقادر» ټول له هندي بابریانو سره د جګړې پر ډګر ووژل شول، په پای کې دغه تاریخي کورنۍ د بایزید لمسي «الله داد خان» له مړینې سره سم په «دکن» کې ویر ځېده.

ملا درویزه په خپل «تذکره الابرار و الاشرار» نومې کتاب کې چې پر ۱۰۲۱ لمریز کال لیکل شوی، ددې کورنۍ په اړه لنډې خو کرکجنې لیکنې کړې، کتلی شئ: د پېښور چاپ تذکره الابرار ۱۳۰۹ کال، ۲۱۳،۱٥۹،۱۳۷ مخونه. د پیر روښان د مذهبي تګلارې د پېژندلو له پاره د «دبستان مذاهب» کتاب ۱۲۹۲ سپوږمیز کال د بمبیې چاپ ۲۳٥-۲٤۷ مخونه کتلی شئ، دا کتاب د یوولسمې هجري پېړۍ په دویم نیمایي کې لیکل شوی او ښکاري چې لیکوال یې یو کرکې او فیلسوف ډوله سړی و. نوموړی کتاب د هند په چاپخونو کې څو ځله چاپ شوی، په ځانګړې توګه هغه چې د نولکشور، لکنهو او کانپور په چاپخونو کې چاپ شوی، د لیکوال نوم پرې نه شته او یوازې د «نامه نګار» بلنوم پرې لیدل کېږي. د نولکشور، کانپور د ۱۹۰٤ کال چاپ کتلی شئ، خو د بمبیې د ۱۲۹۲ کال په چاپ کې یې لیکوال د کشمیري «میرزا محسن فاني» په نامه یاد شوي، سرجان ملکم هم څو ځایه دا نوم یادوي خو په ښکاره توګه دا نوم ناپېژندل شوی دی.

شمس الدین سامي وایي د «دبستان مذاهب» لیکوال د زرتشتي دین ګروهمن موبد (د زرتشتي دین پوه او لار وایې لاربود - ژباړن) وچې اکبر پاچاه پر مهال مسلمان شوی او دا کتاب یې د هغه پادشاه په نامه لیکلی دی. کتلی شئ: قاموس الاعلام، داستامبول چاپ ۱۳۱٦ لمریز کال، شپږم ټوک م. هـ ب توکې. د آر کتاب له لوستنې هم د سامي وینا رښتینې کېږي، په دې مانا چې لیکوال یې تر نورو دینونو او مذهبونو په زرتشتي دین ښه پوهېږي او د کتاب په پیل کې تر نورو دینونو غوره او پراخه څېرنه پرې لیکې، همدا راز د موبد ځینې شعرونه یې رااخیستي او د خپل تېر لیکنې دود په توګه د شاعر نوم په درناوي نه یادوي، همدا لاسوند رابښيي چې د کتاب لیکوال په خپله «موبد» نومېده، والله اعلم بالصواب. خو سامي تېر وځي چې وایي، موبد خپل کتاب د اکبرشاه په نامه لیکلی و ځکه چې لیکوال په کتاب کې د جلال الدین اکبر د لمسي شاه جهان د مهال ځینې لیدلې او اورېدلې پېښې را اخیستي او په یوه ځای کې وایي چې «هغه پر ۱۰۳۳ کال ماشوم و» ۱٤۷ مخ، دبستان، بمبیې. اکبر چې پر ۱۰۱٤ کال مړ شوی، نو ویلی شو چې دا مهال لا موبد زېږېدلی نه و، همدا راز یې د مسلمانۍ په اړه هم غوڅه خبره نه شو کړای.

(۲) خوشال خان خټک د توري او قلم خاوند نومیالي افغان مېړه دی (۱۰۲۲-۱۱۰۰ هجري) دغه سیاسي مشر او اوچت شاعر د هند د بابري حکومت پر وړاندې د افغانستان د خپلواکۍ له پاره ډېرې جګړې وکړې، په دغه لړ کې یې د «تاترې» په جګړه کې د اورنګزیب تر ځلوېښتو زرو جګړه مارو پوځ ماتې ورکړه.

په پای کې افغانان بريالي شول چې د هندوستان د يوولسمې پېړۍ د نوماند شاهنشاه اورنگزېب پر مهال له پېښوره تر اټکه خپلواکه واکمني پر پښو ودروي. پردي واکمن په افغانستان کې دغې پېښې ته ځير او د افغانانو ترمنځ يې د بېلتانه اور ته لمن وهله، په رښتيا هم همدغه سياست د دوي واکمني اوږده او د افغانانو ملي مشران يې مات کړل. ښايي ووايو چې د افغانانو په زرکلنو تاريخونو کې د کورني بېلتانه ترخې پېښې څرگندې او زموږ د تېرو تاريخي ويرونو آر لامل کېدای شي، ځکه موږ په داگه بېلتانه ته (د افغانستان ملي رنځ) وايو.

په هر ډول، پارسي واکمنو په لويديزو سيمو او کندهار کې د بېلتانه اچونې له لارې ژوند کاوه. پر ۱۱۰۵ لمريز کال حسين خان صفوي د پارس پاچاه شو او څه موده وروسته يې د «گرگين» په نامه يو لېونډولی ارمني چې پر پارسيانو پوري يې دومره اړه نه لرله، د «بېگلربيگي» ترنامه لاندې د کندهار د پوځي کوماندان او نايب الحکومه په توگه وټاکه او راولېږه.

گرگين له شل زريز اردو سره سيمې ته راغی خو څه موده وروسته ورته څرگنده شوه چې دده خپلسرۍ پر وړاندې دوه ملي ځواکونه ولاړ دي چې يو يې د ابداليو او بل يې د غلزيو څانگه ده. د لومړۍ څانگې مشر د احمدشاه نيکه «دولت خان» او د دويمې هغې «ميرويس خان هوتک» و.

گرگين چې د افغانانو اروا يې نه پيژنده، له حکومتي نامه او نښې سره يې ان د خواړو د پېرودلو له پاره هم ملي مشرانو ته مغرور اړول ستوغه گڼله، له همدې امله يې پريکړه وکړه چې په هر ډول چې کېدای شي دا دواړه ځواکونه له منځه يوسي او د خپلو يرغلونو له پاره ډگر پرانيزي. گرگين دا کار پيل او هرڅنگه چې کېده، لومړی ځواک يې سملاسي وځاپه، خو دويم ځواک هماغه و چې دی او دده لارښود دولت يې له منځه يووړ.

داحمدشاه نيکه «دولت خان» د کندهار ښار ختيز خواته پېنځه ويشت ميله لرې په صفا ښار کې په خپله کلا کې اوسېده. پر يوه توره او غلې شپه چې په بانډو کې هيڅ غږ نه پورته کېده د گرگين سپرو کنډکونو دا کلا، کلابند او په زور يې ونېوه. دولت خان په زړورتيا گرگين ته ورغی، خو د کورنۍ ځينې غړي يې په تېښته بريالي او ځينې يې

ونیول شول. گرگین په بیره دولت خان او د هغه مشر زوي نظر محمد خان ووژل او شتمني یې تالان کړه. گرگین دا کار د سدوزی دولت خان، عزت او اتل خان د کورنیو شخړو له امله «چې یو تر بله خپلوان وو» بشپړ کړ. د احمدشاه د نیکه دولت خان برخلیک همدلته پای شو، خو د نوموړي پښېښې نښه څرگنده نه ده، پرته له دې چې گرگین د حسین صفوي تر منځته راتگ (۱۱۰۵ لمریز) کال وروسته کندهار ته راغلی، کېدي شي چې د دغه چار د بشپړولو له پاره په ځنډ راخوځېدلی وي.

اتکلي ویلي شو چې دا پېښه به د ۱۱۱۵ سپوږمیز کال پر شا و خوا شوې وي. د دې پېښې تر پرسېرېدو وروسته د ارغستان ابدالیان چې ارته سیمه یې په لاس کې وه، وسله وال شول او له گرگین څخه یې د غچ اخیستلو له پاره د دولت خان نور زامن چې له تاړاکه ژغورل شوي وو؛ خپل مشران وټاکل او جگړه یې پیل کړه.

دا مهال گرگین وویرېد؛ د سولې له لارې راوړاندې شو او د دولت خان د زوي «رستم خان» مشري یې په دې توگه ومنله چې د دولت خان کشر زوی «زمان خان» ده ته برمته ورولېږل شي، رستم خان چې بله تگلار یې په پام کې وه دا غوښتنه یې ومنله، خو گرگین نه غوښتل چې هغه ته وار ورکړي، نو څلور کاله وروسته یې رستم خان په چل راوغوښت : بندي یې کړ او ویې واژه، کورنۍ او خپلوان یې چې د کندهار ختیز لوري ته خو میله لرې د علی آباد کاریز ته خیرمه اوسېدل د گرگین له خوا تالا او د گرشک و فراه ترمنځ د ښوراوک و بکوا سیمو ته وشړل شول.

# دریم څپرکی

## د احمدشاه پلار

داحمدشاه پلار «زمان خان» نومیالي سړی دی، خو د تاریخ په تیارو کې یې ډېر لږ وینو. په اټکلي توګه پر ۱۱۱۵ سپوږمیز کال چې پلار یې دولت خان او مشر ورور یې نظرمحمد خان د ګرګین په کرغېړن لاس ووژل شول او د ابدالیانو مشر توب د ده ورور رستم خان ته ورسېد؛ دی د برمته په ډول ګرګین ته ورولېږل شو. نه پوهېږو چې دا مهال دې څو کلن و، خو دا څرګنده ده چې ماشوم نه و او ښایي تر پنځلسو کلو به پورته و، ځکه چې د افغانانو د دود له مخې تر دغه کوچني هلک برمته نه لېږل کېږي.

زمانخان د ګرګین له خوا «چې د دې کورنۍ بنسټیز ړنګول یې هیله وه» کرمان ته ولېږل شو او تر ۱۱۲۲ سپوږمیز کال پورې یې هلته تر څارنې لاندې ژوند کاوه.

پر ۱۱۲۱ سپوږمیز کال ګرګین له خپل ټول شل زریز اوردو سره د کندهار د غلزیو د ځانګې د مشر میرویس خان هوتک له خوا ووژل شو. پارسي واکمنۍ د ګرګین وراره «خسرو» له پنځه ویشت زریز اوردو سره چې د کرج و عجم له کوله و، د ګرګین د وینې ګټلو له پاره کندهار ته راولېږه، خسرو چې کرمان ته راغی، زمان خان یې پخلا او د ابدالیانو د مشر په توګه یې کندهار ته راوست چې د هغه په مرسته د ابدالیانو ملاتړ تر

لاسـه كـړي او د كندهار د غلزي دولت پر وړاندې يې وكـاروي، ځكه چې هغـه د دواړو افـغـاني ځـانگو په تريگنې پوه و، خـو چې كندهـار ته راغـى، ويې ليـدل چې ابداليـو د گرگيـن تر وژل كېدو وروستـه «عـبدالله خان ابدالى» له ملتانه راغوښتى او مشري يې ورسپارلې، نو اړ شو چې د عبدالله خان مشري ومني. زمان خان هم له عبدالله خان سره د ليدنې په ترڅ كې يې له دې چې پخواني زړه بدى په پام كې ونيسي، د هغـه مشرتوب ومانه، په دې توگه دواړه كورنۍ چې له كلو راهيسې يې ترمنځ دښمني وه سمدلاسه روغـې تـه ورسـېـدې. د دوي دښمني لامل دا و چې د زمـان خـان پلار «دولت خـان» د عبدالله خان له پلار «حيات سلطان خان» څخه د ابداليو مشري نېولې او هغه يې له خپل كهاله سره د ملتان تگ ته اړ يوستى و، سلطان محمد دا پېښې په ځير سپړلې دي.

په كندهار كې خسرو د خپل تره (گرگين) په بر خليک اخته او ترڅو جگړو وروسته پر ۱۱۲۳ لمريز كال له خپل ټول اوردو سره د افغانانو له توري تېر شو.

د ابداليانو مشر عبدالله خان چې له غلزي دولت سره نه جوړېدونكى و له لويې دلې سره له كندهاره فراه ته وخوځېد، زمان خان هم له د غه سيال مشر سره بدرگه شو، عبدالله خان له فراه څخه هرات ته لاړ او زمانخان هم ورسره و.

عبدالله خان هم ځانته څه ويل او غوښتل يې چې دويم ميرويس شي. د هرات پارسي واكمن «عـبـاس قلي شـاملو» د پخواني واک سـاتنې له پاره، عـبـدالله خان له خپل زوى «اسدالله خان» سره بندي كړ، خو افغانانانو چې د پرديو د وركونې ژمنه يې كړې وه، هود يې وانه وښت او د «آزاد خـان ابدالى» په مـشـرۍ يې جگړې ته ورودانگل. د پارس حكومت «د دې له پاره چې د هرات شـخړه د كندهار غونډې نه شي» عبـاس قلى لرې او جعفر قلى استاجلو [1] يې پر ځاى وټاكه. د همدغـه كړكيچ په ترڅ كې عبدالله خان ابدالي له زندانه وتښتېد او ژر تر ژره يې د وينا وو او منځگړيو په مرستـه د هرات او اسفزار ټول ابداليان د پرديو د شړلو له پاره د ځان مله او پر هرات يې بريد وكړ.

پارسـيـان وبېرېدلې وو؛ د تـاريخ ليكونكيـو د څرگندونو له مـخـې يې توپونو د افغانانود ويشتلو پر ځاى د خپلو سپرو كرښې ويشتلې [2] په هر دول، پايله څرگنده وه؛ پارسيان برمته او ووژل شول او د هرات افغاني حكومت د عبدالله خان ابدالي په مشرۍ

(۱) يوه توركي څانگه ده چې د صفويانو پر مهال يې گڼ شمېر وگړيو په اوردو كې دنده لرله. «ژباړن
(۲) تاريخ عمومى، د ميرزا عباس اقبال خان پارسي ليكنه، دويم چاپ، تهران ۱۳۰۵ لمريز ۱۹٤ مخ.

د ۱۱۲۹ سپوږمیز کال د روژې پر ۲۶ نیټه منځته راغی، عبدالله خان پر له پسې، فراه ونیو؛ د فتح علي تورکمن تر مشرۍ لاندې رالیږل شوي پارسي جګړه مار یې په «کوسویه» کې وکوټل او د هرات د چارو پر سمون بوخت شو.

له بده مرغه ددې کورنۍ او د کندهار د غلزي هغې ترمنځ د فراه د نیولو پر سر د جګړې اور بل او پر ۱۱۳۲ کال د فراه په دلارام کې د عبدالله خان تکړه زوی «اسدالله خان» د میرویس د زوی «میرمحمود» له لاسه ووژل شو او سپینږیری پلار یې له کاره ولوېد.

عبدالغني خان الکوزي چې د هرات له سترو مشرانو څخه و، ولیدل چې نور د سپینږیري او زړه چاودی عبدالله خان له لاسه څه نه کېږي، نو د هرات نورو افغاني مشرانو ته یې د نوي مشر ټاکنې وړاندیز ورکړ او په ترڅ کې یې «زمان خان» ددغه چار له پاره وړوښوو. د هرات جرګې هم په غوښه پریکړه ومانه، په پایله کې عبدالله خ :لرې او د احمدشاه پلار «زمانخان» یې پر ځای وټاکل شو. تر دې وروسته زمان خان د هرات د واکمن په توګه په څرګنده توګه په نوموړي ښار کې لیدل کېږي. زمانخان تر دېره ژوندی نه و او تر دوو کلو او پنځو میاشتو مشرۍ وروسته پر ۱۱۳۵ کال مړ شو. اټکل کېږي چې زمانخان تر شپېتو کلو پورته نه و، ځکه، دا ناشوني ده چې د هرات جرګې دې عبدالله خان د زړښت له امله لرې کړی او د هغه پر ځای دی یې بل اویا کلن بوډا ټاکلی وي.

# څلورم څپرکی

## د احمدشاه مور

افغان تاریخپوهان داسې روږدي شوي چې د ښځو په تاریخي اړه لږ غږېږي هغه هم په ځانګړيو ارزښتمنو پېښو کې او یا د یو شمېر ودونو یا مړینې په اړه، ځکه نو دا دومره هېښنده نه ده چې د افغانسان د نورو ښځو غوندې، د احمدشاه د مور په اړه د خپل تاریخ په پاڼو کې څه نه مومو.

سلطان محمد همدومره لیکي چې: «احمدشاه د غه ویاله (د روضې ویاله) د ارغنداو سهند لویدیز خواته د نوي ښار د ودانولو له پاره ښېدیا ته ویوسته، الکوزیو چې د ځمکې له ورکړې ډډه وکړه، احمدشاه همخپله پرېکړه پرېښوه، څه موده وروسته چې د شاه مور مړه شوه هلته یې ښخه او پر ځای یې «روضه» نوم کېښو.[1] فیض محمد هم پر سلطان محمد پسې همدا راز لنډه څرګندونه کوي.[2]

ښکاره ده چې له دغو ناڅرګندو لیکنو نه څه لاس ته نه راځي، خو د کندهار سیمه یزې اترې د تاریخ لیکونکیو د غه بې ځایه چوپتیا ماتوي. د کندهار ښار اوسني اوسېدونکي چې پېنځم او شپږم نیکونه یې د احمدشاه همهالي وو، د احمدشاه د مور په اړه یې سینه پر سینه خبرې ساتلي او تر اوسه ورسره شته، په دې اړه د دوی خبرې اترې د منلو وړ دي ځکه چې بهرني ښې یې پیاوړی ملاتړ کوي. وګړي د احمدشاه

(۱) سلطاني، ۱٤۳ مخ.

(۲) سراج التواریخ، ۳۰ مخ.

مور «زرغونه» بولي. زرغونه له آره پښتو ويی او ماتا يې «شنه» ده. ډېرې افغاني ښځې په دغه نامه نوموړې شوي، د احمدشاه د يوه هممهالي ليکوال ليکنې، دغه سيمه ييزې اترې سمې گڼي، نوموړی ليکوال د خپل کتاب په يوه ځای کې د کرماني شاعر «ميرزا علی اکبر» بُرودي درې بيتونه ليکلي چې په هغوی کې د احمدشاه د مور نوم «زرغانه» راغلی[1] کېدی شي چې وروسته د ليکنې ورته والي له امله د ليکونکي (کښاند) يا د اروپايي چاپچاريو له خوا پر «زرفانه» اوښتی وي. د احمدشاه پر وړاندې د شاعر ژوره کرکه هم څرگندونې ته اړتيا نه لري، ده خپل بيتونه د همدې کرکې تر اغېز لاندې ويلي: د خراساني نادرشاه د کورنۍ د واکمنۍ تر ړنگېدو راوروسته او د افغان احمدشاه د لوړتيا ورځې يې غندلي او د فردوسي خراساني يو بيت هم په خپل شعر کې تضمينوي.

هماغسې چې افغانان د احمدشاه مور «زرغونه انا» بولي، زوی ته يې هم «بابا» وايي او ونډ يې الکوزی گڼي «کوه» کلی چې د احمدشاه د مور هديره په کې ده، د هغې تر ژوندانه مخکې تر اوسه پورې د يو شمېر الکوزيو ټاټوبی دی، احمدشاه هم د خپلې مور هديره هماغه ځای وټاکه، له دې نه ښکاري چې مور يې الکوزۍ وه او د پښتنو د دود له مخې د خپل ونډ په ديرکې ښخه شوې ده.

پرگڼې وايي چې د احمدشاه مور د اوسني کندهار ښار تر ودانېدو وروسته (۱۱۷۴) مړه شوې او د دغو ويناوو له پاره کيسې هم لري، لکه وايي: احمدشاه چې د ښار د بوالونه او جگړه يز برجونه جوړ کړل، د هماغه مهال له دود سره سم يې گرد چاپېر د ژورې اوارتې کندې د وېستلو لارښوونه وکړه، زرغونې انا چې دا پرېکړه واورېده خپل زوی ته يې ووېل: «د يوه افغان پاچاه له پاره شرم دی چې له دښمن نه خپله پلازمېنه د کندې په مرسته وساتي. تا ته نه ښايي چې د کاله ترمنځه د دښمن راتگ اټکل کړې.»
احمدشاه هم د خپلې مور مېرانې ته په درناوي، د سترې او ژورې کندې له وېستلو تېر شو او پر ځای يې کوچنۍ وياله چې د ښار او به پرې ووځي؛ ووېسته. همدا راز وايي چې:

(۱) کتلی شئ: «مجمل التاريخ بعد نادريه» کتاب، د ابن محمد امی ابوالحسن گلستانه نيکه، د لندن چاپ ۱۸۹۶ کال، ۱۳۵ مخ. ليکوال زلمی وچې پر ۱۱۶۹ لمريز کال له پارس نه هند ته لاړ او خپل کتاب يې پر ۱۱۹۵ سپوږميز کال په مرشد آباد کې وليکه، نوموړې او رېدل شوې پېښې چې دده د تاريخ بنسټ پرې ولاړ دي؛ ساتلې نه دي او له مذهبي کرکې او شاعرانه اغراق سره يې گډې کړي، ځکه يې کتاب ډېرې تاريخي تېروتنې لري چې کره کتنه يې جلا ليکنه غواړي. «هراسکارمن» په هغه الماني سريزه کې چې پر دغه کتاب يې ليکلې نوموړيو تېکيو ته ځير شوی او په ترخ کې يې نغوړلي.

په هند کې له مرهتيانو نه د احمدشاه د ماتې او تېښتې (۱۱۷٤) خبر «چې دروا غ و» کندهار ته راورسېد، وګړي د احمدشاه په تېښته او د اوردو په ځپېدو خواشيني شول. زرغونه انا چې خبره شوه ګرد چاپېر وګړيو ته يې وويل: «بري او ماتې د تقدير پرېکړه ده، احمد به مړ شي خو تښتي نه!»

په هر ډول، زما موخه د دغو رواياتو له راخيستو نه، د هغوی د تاريخي رښتينولی منل يا نه منل نه دي، همدومره غواړم چې د احمد شاه د مور په اړه د کندهاريانو انګېرنې رابرسېره شي.

دا منلې شو چې د سيمه يزو روايتونو او د تاريخ ليکونکي سلطان محمد له څرګندونو سره سم د احمدشاه مور له ۱۱۷٤ کال (د داوسني کندهار ښار ودانېدل) وروسته، د احمدشاه تر مړينې (۱۱۸٦) لې څه وړاندې مړه شوې، نو د مړينې نېټه يې د ۱۱۷٤ او ۱۱۸٦ (د احمدشاه د مړينې نېټه) کالو ترمنځ اټکلېږي. که داسې وګڼو چې زرغونه انا د احمدشاه د زېږېدو پرمهال (۱۱۳۵) شکل کلنه وه او د ۱۱۸۰ لمريز کال پر شا وخوا مړه شوې نو دې پايلې ته رسېږو چې اروا ښادې (٦٠) يا (۷٠) کاله ژوند کړی، خو د هغې ګور چې د سلطان محمد د ناڅرګندې ليکنې له مخې د ارغنداو سيند ښي اړخ ته په «روضه» نومې ځای کې دی، يوه ساده ودانۍ ده چې د اوسني ښار شمال لويديز لوري ته د ځلورو ميلو په شا وخوا کې لرې د «کوهک» غره په لمن کې جوړه شوې. کوهک کلی له دوو سوو بهلا، بهلو الکوزيو کورنيو څخه جوړ دی. د کوهک ځمکې کرنيزې دي خو د ګاونډيو کليو په توپير پرته له انګورو نور بڼونه نه لري. د کوهک کوچني غره پر سر د پخوانيو کلکو ديوالونو او برجونو نښې شته، داسې ښکاري چې مخکې په دغه لويه سيمه کې يو کلک پوځي کوټ و. د دغه ځای کروندګرو ماته وويل چې په لرغوني پېر کې دغه پوځي ښار دغره له څوکې د ډاګ ترمنځ پورې د يوه اوږده ژور سوري له لارې اړيکې لاره او د جګړو په ترڅ کې اوبه له کاريز نه پورته ورل کېدې.

د دغه روايت رښتينواله اړنګ لري خو ما ونه کړای شو چې دغه کنډوالې په ځير وګورم او وېې څېرم. د کوهک، ناګهان او روضې وياله د زرغونې انا د زيارت له شمالې لوري څخه څنګ ترڅنګ بهېږي او د ځمکې په پنه ولو کې مرسته کوي.

د کلي ملا په ډېره مينه د کوهک د پښوانيو باغونو په ځانګړي توګه د احمدشاه د يادګار «شاهي باغ» يادونه کوله او خواشيني و چې نوموړی باغ چې پر (۱۲۰) جريبه ځمکه ودان شوی او د زرغونې انا د زيارت درېو خواوو ته راچاپېر و، اوس نه شته.

د زرغونې انا زيارت يوه مربع ودانۍ ده چې پاس پر منځ يې ګومبزه ليدل کېږي. د ودانۍ سهيلي او شمالي اړخ درې، درې پرانيستې برنډې لري چې له منځنۍ خونې څخه يې د ګومبزې منځ ته لارې دي.

د اړخونو برنډې په څلور ګونو خونو کې جوړې شوې (د کوټو غولۍ وران او ورونه يې په خښتو او ختو تړل شوي دي) د ودانۍ ختيز او لويديز اړخونه له منځ نه د ګومبزې پر لوري په يوه برنډه بېل شوي (دا لارې يې نيمې په ختين دېوال تړلي دي) له ورايه د ګومبزې د بام د چندړ کارۍ نښې نښانې، تاپې ښکاري خو د ځلي هيڅ نښه نه شته، کېداي شي چې له آره به يې نه لاره. دا ودانۍ په پخو خښتو جوړه شوې، سره له دې چې د مهالپېښو له امله يې خپله تړله ښکلا بايللې خو بيا يې هم خپل کالبوت ساتلی دي. د ودانۍ په منځ کې يوه اته اړخيزه ساده ګومبزه وه چې خښتې يې په ګچ پټې دي: پرمخ يې په ښېلا، ښېلو رنګونو ښکلي انځورونه کښل شوي او ځينې الوتې اسماني، بنفش، شنه او نسوارې دود لرلي رنګونه پرې ليدل کېږي.

ګومبزه په خپلو څلورګونيو پورتنيو خواوو کې څلور اوږدې کړکۍ لري چې هوا او رڼا ترې رانوځي خو له څه مودې راهيسې دا دننه د ګومبزې ځوکې چې پرسر سورې شوې او باد و باران ترې رانوځي پرغاړه اخيستې ده. د ګور ښېرنې جوړښت «چې د ګردۍ په منځ کې دی» خپله آرا و پښواني بنه اړولې او په ناشو له ته لاسونو ختې پرې تپل شوي دي. له بده مرغه د ګور ډېر ليک چې د تاريخي منځپانګې، نامه، ځای، مياشتې او کال پېژندنه ترې کېږي او په داسې ځايونو کې يې شته والی ډېر ارزښت لري: ورک دی.

دا و د کندهار په کوچني کلي «کوهک» کې د افغان احمدشاه بابا د مور زرغونې انا زيارت چې اوس يې د کندهار سيمه يز حکومت بيا ودانول پيل کړي دي.

# پینځم څپرکی

## داحمدشاه ورور

مخکې مو وویل چې زموږ په تاریخونو کې د ښځو د نومونو او نښو لړ یادونه کېږي، ځکه نو د احمدشاه د خویندو په اړه «که لرلې یې هم» په څه نه پوهېږو، که څه هم چې داسې لاسوند راسره نه شته چې له شته والي یې سترګې پټې کړو ځکه چې ډېر لږ لیدل شوي چې یوه کورنۍ دې د زامنو د لرلو تر څنګ لونې ونه لري، خو د ډېرو افغاني تاریخونو په وینا د احمدشاه ورور هماغه بې ساري «ذوالفقار خان» دی چې د هرات بې جوغې نومیالی تولواک و. د پښتنو په تېر لیکونو کې د احمدشاه د پلار «زمان خان» بوازې دوه زامن، ذوالفقار خان او احمدخان ښوول شوي دي. د احمدشاه مشر ورور «ذوالفقارخان» د هېواد په تاریخ کې نومیالی، هېواد پال او تکړه افسر و. د هرات د ملي حکومت تر جوړېدو او د پارس د لاس تر لنډېدو وروسته پر ۱۱۳۶ او ۱۱٤۲ سپوږمیزو کلو یې د هغې سیمې واکمني ونیوه او پر له پسې یې د پارس او خوراساني نادرشاه د رالېږل شویو جګړه مارو پر وړاندې جګړې وکړې، وروسته چې د کورنیو شخړو له کبله د نادر پر وړاندې د هرات په ساتنه کې بې جوګې شو، مخکې تر دې چې په خپل لاس نادر ته د هرات په سپارلو اړ شي، واک یې پرېښوو او له خپل ورور احمدشاه سره پر ۱۱٤٤ کال د خپل کورني سیال «شاه حسین» دربار ته ورغي خو لته د سیاسي کتنو له کبله بندي او د نادر تر راتګ پورې په زندان کې پاتې شو.

وروسته تر دې چې نادر کندهار ونیو ، د هغه درناوي له پلوه چې خپلو مېړنیو دښمنانو ته یې لاره، ذوالفقار خان یې هم په درناوي ومانه او په مازندران کې یې اوسېدو ته ولېږه، ځکه چې په افغانستان کې د ننه د داسې نومیالي او پېژندل شوي سړي شته والي د هغه له سیاسي گټو سره سمون نه لاره.

ذوالفقار خان د ۱۱۵۱ کال په پیل کې مازندران ته لاړ او څه موده وروسته مړ شو. که ذوالفقار خان د نادر تر مړیني وروسته ژوندی وای کېدای شوه چې د هغه هواد د تاریخ اړولو لامل شوی وای.

دا چې ذوالفقار خان د احمدشاه سکني ورور و که میرنی، په دې اړه څه لاسوند نه شته، خو هرات و فراه ته د ذوالفقار خان له بېلو بونونو او له هغه نه د احمدشاه د مور او د هغې د کوچني زوي د لرې پاتې کېدو له امله، زه داسې گنم چې زوالفقار خان او احمدشاه میرني ورونه وو. د دواړو ورونو د ژوندانه واټن هم دا وینا زباتوي ، ځکه چې د پلار تر مړینې یې وروسته (۱۱۳۶ ل) احمدشاه دوه کلن ماشوم و چې ورور یې ذوالفقار خان لاربښود زلمي او د هرات د واکمنۍ وړ گڼل کېده. دا مهال د ذوالفقار خان منگ د شلو او دېرشو کالو ترمنځ و ځکه چې تر دې کشر د هاغه مهال له سیاسي او جگړه یزې او تاسره سم د یوه لوي ولایت مشر تاکل کېدی نه شو. د دغه الواک له منلو سره سم شایي په اټکلي توگه ووایو چې ذوالفقار خان به د دوولسمې لمریزې پېړۍ په پیل کې زیږېدلی وي، که د مور لومړنی زوي وي نو د مور منگ یې هاغه مهال شل کاله اټکلولای شو او احمدشاه چې پر ۱۱۳۵ کال زیږېدلای، نو بویه ووایو چې سربېره پر دې چې د احمدشاه مور به تر بوې پېړۍ ډېر ژوند کړی وي، احمدشاه به یې هم دژوندانه پر پنځوس کلنی زیږولی وي، چې داسې پېښه ډېره لږ لیدل کېږي.

ابن محمد امین وایي چې د احمدشاه وراره او نایب السلطنه «لقمان خان» هند ته د احمدشاه د لومړي تگ پر مهال په کندهار کې و ، او د تیمور شاه پر مهال د لقمان خان د زامنو یادونه هم کوي. [1] د دغه روایت له منلو سره بویه وویل شي چې د ذوالفقار خان تر مړیني وروسته د لقمان په نامه یو زوي ترې پاتې شو چې په کندهار کې د خپل تره له دربار سره یو ځای و.

---

(۱) مجمل، ۱۱۲ مخ، ۱۵۲ مخ.

که د «شیرمحمد گنداپوري» وینا چې کبداي شي د «محمد مهدی» لیکنې یې لیدلي وي، د اډمنه وای[1] نو ویلای مو شول چې احمدشاه د «علیمردان» په نامه دویم ورور هم لاره چې په فراه کې یې د افغان و پارس په جګړه کې ګډون کړی و.[2]

خو څومره چې کتل شوي په نورو افغاني تاریخونو کې د دغه نامه او چارنښې یادونه، نه شته.

(۱) جهانگشا، ۱٦٧ مخ، د بمبیي چاپ ۹ ۱۳۰ ل.

(۲) خورشید، ۱٥۲ مخ، بویه وو ایو چې د دغه کتاب سیاسي منځپانګه ډېري تیروتنې لري او د ډاډ ور نه دي.

# شپږم څپرکی

## د احمدشاه د زیږېدو ځای او نېټه

په «ملتان» کې د احمدشاه د زیږېدو خبره یوه ښکاره تېروتنه ده چې له ځینو هندوستاني لیکوالو نه اوربدل شوې او یو شمېر نورو یې پېښې کړي، لکه محمد حسن هندي چې پرته له کوم لاسونده د خپل کتاب په یوه ځای کې وایي: «احمدشاه خطهء ملتان مین پیدا هوا... = احمدشاه د ملتان په سیمه کې زیږېدلی...» او دا دوه بیتونه هم د هغه د تولواکېدو په اړه وایي:

چو بنشست احمدشه نامدار — به تخت خلافت بصد اعظم و شان
ندازد بشیرم ز سال جلوس — بود تا اید این خدیو جهان[1]

فیض محمد هم د «تاریخ احمدي» له مخې همدا کیسه لیکي چې: «د احمدشاه نیکونه د ملتان او سېدونکي وو، دی هم هلته زیږېدلی او په ماشومتابه کې د ځینو پېښو له کبله له خپل پلار «محمد زمان» سره کندهار و له هغه ځایه هرات ته لاړ دی.»[2] مورږ پوهېږو چې دا روایتونه بې بنسټه دي او «تاریخ احمدي» د «مرأت الاشباه» په څېر یې د احمد شاه کورنی د ابدالیانو د پخواني مشر د حیات سلطان د زوی «عبدالله خان» له کورنۍ سره چې په ملتان کې کېوال و، ګډه کړې ده. حیات سلطان چې د کندهار د

(۱) محمد حسن د احمدشاه هم مهالی و او د هغه د سلطنت په پای کې (۱۱۸۵) یې د «مرأة الاشباه» په نامه په پارسي ژبه یو کتاب ولیکه، دا کتاب وروسته په «اردو» وژباړل شو او په «اوده» ولایت کې چاپ شو، همدا چاپ کتلی شئ، ۴۷ مخ.

(۲) «تاریخ احمد» د منشي عبدالکریم لیکنه ده چې د احمدشاه د لمسي «شاه شجاع» هممهالي و، دغه لیکوال په ناسمه ترګه د حیات خان ابدالی زوی عبدالله خان د زمان خان پلار و د احمدشاه نیکه بللی او داسې ګڼي چې احمدشاه او پلار یې له نوموړي عبدالله سره له ملتانه هرات ته تللي.

ابدالیانو د خانی تر رنګېدو وروسته پر بوولسمه لمریزه پېړۍ ملتان ته لاړ څه موده وروسته یې زوی عبدالله خان پر ۱۱۲۲ کال کندهار ته راغی او یو ځل بیا د ابدالیانو د «خان» په توګه هرات ته لاړ. عبدالکریم او نور و احمدشاه د نوموړي عبدالله خان لمسی ګڼلی او داسې پایله یې اخیستې چې احمدشاه په ملتان کې زیږېدلی دی. خو داسې نه ده، دا دواړه یو تر بله جلا او سیالې کورنۍ دي. د احمدشاه کورنۍ له پخوا راهیسې د اوسني کندهار ختیز خواته د صفا ښار د ابدالیو په منځ کې اوسېده. [1]

لکه مخکې چې وویل شول، یوازې د احمدشاه پلار زمان خان، څو کاله په کرمان کې اوسېدلی، له دې نه ښکاري چې په ملتان کې د احمدشاه د زوکړې سکالو چوره درواغ ده. په کلک اټکل سره به یې لاندې ولولئ چې احمدشاه په هرات ښار کې پر ۱۱۳۵ لمریز کال زیږېدلی دی.

تاریخپوهانو د احمدشاه د زوکړې نېټه ښوولې نه ده، د ګروال «میلسن» او «محمد حیات» وایي چې احمدشاه د تولواکېدو پر مهال (۲۳) کلن و. [2] ښکاري چې دوی دواړه تېروتي، ځکه چې د احمدشاه پلار زمان خان پر ۱۱۳۵ لمریز کال مړ شوی دی. محمد حیات د سلطان محمد غوندې د هغه د مړینې دا نېټه سمه ګڼي. [3] که احمدشاه د تولواکېدو پر کال (۱۱۶۰ ل) (۲۳) کلن و، نو بویه چې د خپل پلار تر مړینې دوه کاله وروسته زیږېدلی وي چې دا نا شونې ده نور تاریخلیکونکي چې د احمدشاه تر مړینې وروسته د هغه د منګ په اړه غږېږي، یو «علامه سید جمال الدین افغان» او بل پېرنګی «سرجن ملکم» دی چې دا دواړه د احمدشاه مړینه پر (پنځوس) کلنۍ ښيي. [4]

د احمدشاه دا منګ ټاکنه تر ډېره ریښتینې ښکاري او دا منلای شو چې احمدشاه تر پنځو کلونو خورا ډېر ژوند کړی نه دی، لومړی، ځکه چې له یوې خوا د احمدشاه د پلار زمان خان او ورور ذالفقار خان او له بلې خوا د کورنیو سیالانو او پارس واکمنی تر منځ په تولو جګړه یزو پېښو کې، تاریخونو هېڅکله هم د احمدشاه د ګډون یادونه نه ده کړې، خو په دغو جګړو کې د زمان خان او ذوالفقار خان د پوځي افسرانو او کوماندانانو

(۱) سلطاني، د ابدالیو تبر «سرلیک، ۵۲-۶۹ مخونه.

(۲) کتلی شئ: «د افغانستان تاریخ» د ګروال «میلسن» لیکنه، دویم چاپ، لندن ۱۸۷۹ کال، د احمدشاه تر پېښو لاندې، له ۲۶۷ تر ۳۴۵ مخه.

(۳) حیات، ۱۲۷ مخ، سلطاني، ۱۰۰ مخ.

(٤) کتلی شئ: «تتمة البیان فی تاریخ الافغان»، د سید جمال الدین افغان لیکنه، د مصر چاپ ۱۹۰۱ کال، ۶۹ مخ، د ملکم تاریخ، د هند چاپ ۱۸۶۷ کال، دویم ټوک، ۱۲۷ مخ.

نومونه راغلي، له دي نه زياتېږي چې دا مهال (د زمان خان د مشرتابه له پيله ۱۱۳۲ کال د هرات له واکمنۍ نه د ذوالفقار خان تر لاس اخيستو [۱۱٤۳ کال] پورې) يا احمدشاه نه و او يا دومره کوچنی و چې د جګړې پر ډګر يې د ګډون ورتيا نه لرله، که نه دا ناشونې ده چې د يوه افغان مشر، زوی دې د ځوانۍ په ورځو کې د پلار په ملاتړ د کورنيو او بهرنيو دښمنانو پر وړاندې، توري ونه وهي او نوم يې وانه خيستل شي.

حيات افغاني وايي چې د زمان خان له مړينې او پر هرات د هغوی د سيالې کورنۍ (د عبدالله خان کورنۍ) تر واکمنېدو وروسته، د احمدشاه مور له خپل کوچني زوی (احمدخان) سره په پټه د فراه لوري ته لاړه. (۱)

د محمد حيات دا وينا چې احمدشاه يې د خپل پلار د مړينې پر مهال کوچنی ښوولی، د اينسايکلوپيډيا اف اسلام» له ليکنې سره چې په کندهار کې يې پر کوچنيوالي د احمدشاه بنديتوب په نښه کړی؛ سمون لري. بله دا چې احمدشاه تر خپلې مړينې درې کاله مخکې د هند په سېزونکيو ډاګونو او د هېواد په شمال لوېديزو سيمو کې، داس په سپرلي پر جګړو (۱۱۷۷-۱۱۸۳) بوخت و. سره له دې چې احمدشاه د تيمور و سليمان په څېر زامن او د شا ولي او جهان خان غوندې سرداران لرل، دا لري ښکاري چې په خپله په بوډاتوب کې د جګړو له پاره د اس په سپرلي دغه اوږده واټونه وهي، نو ښايي وويل شي چې احمدشاه له نړۍ نه د تګ پر مهال پنځوس کلن و. دا چې پلار يې له (۱۱۲۳ سپوږميز کال) نه وروسته تر مړ کېدو (۱۱۳۵ کال) پورې (۱۲ کاله) په هرات کې وينو، راته څرګندېږي چې که احمدشاه پنځوس کاله او يا هم تر دې ډېر ژوند کړی وي، بيا م، د زېږېدو ځای يې هرات او په کلک اټکل هرات ښار دی.

اينسايکلوپيډيا اف اسلام، هم دا ټکي مني او وايي: پر ۱۷۲۲ زېږدي کال، دې کورنۍ (د احمدشاه کورنۍ) خوراسان ونيو او د مشهد پر لوري وړاندې لاړل، دا مهال احمدشاه هم زېږېدلی و او ډېر وي چې: «احمدشاه چې تولواک شو، (۲۵) کلن و.»

له پورتنيو څرګندونو نه دا پايله اخلو چې احمدشاه پر (۱۱۳۵) کال په هرات کې وزېږېد؛ چې (۱٦) کلن شو پر (۱۱۵۰) کال يې په کندهار کې د خوراساني نادرشاه له دربار سره اړيکي ومونډل؛ چې (۲۵) کلن شو پر (۱۱٦۰) کال په همدغه ښار کې تولواکۍ ته ورسېد، او چې يو پنځوس کلن شو، پر (۱۱۸٦) کال د کندهار په «اړونده توبه غر» کې يې له نړۍ نه سترګې پټې کړې. العلم عند الله العليم

---

(۱) حيات، ۱۲۷ مخ

# اووم څپرکی

## د احمدشاه زده کړې

احمدشاه د ژوندانه له پیله تر پایه له داسې کورنۍ، چارپېریال و مهال سره اړیکي لرل چې د توروله خرپهار او د توپ و توپک له غرمبهار پرته یې بل څه نه لیدل او نه اورېدل؛ لا کوچنی و چې خپل ورور یې د عبدالله خان ابدالي له سیالي کورنۍ او پارسیانو سره په جګړو لګیا لیده؛ له نوي زلمیتابه سره سم د کندهار زندان ته ننوېستل شو؛ تر دې وروسته یې د ژوندانه شپې کاله له نادرشاه سره په ملتیا په یانه او جګړو کې تېر کړل او بیا د ژوندانه تر پایه په هېواد چارو کې بوخت و. څرګنده ده چې ددغه راز برخلیک په ترڅ کې هغه زده کړې ته وزګار نه و، خو بیا هم لیدل کېږي چې کله وزګار شوی، زده کړه یې شاته غورځولې نه ده، احمدشاه په دواړو ملي ژبو (پښتو او دري) ښه پوهېده او په پښتو یې شعرونه هم ویل. سره له دې چې د احمد شاه شعرونه ساده او تر ډېره د مینې څرګندوی دي خو بیا هم سوچه شعر دی.

احمدشاه تر بل هرڅه ډېر د سیاست و جګړې مېړه و، له هغو ازمېښتونو څخه چې ده په دغو دوو ځانګو کې تېر کړي، زیاتېږي چې دی د ختیځ ستر پوه نومیالي او، ویاړونه یې هم د عملي اړخ اړوند دي.

د هر پرځای ویل شوي چې په تولنه کې د سړي ارزښت د دې اړوند نه دی چې څومره پوهیږي دا ارزښت تر ډېره له دې سره تړلی چې څه غواړي او څه کړای شي.

# اتم څپرکی

## د احمدشاه شخصیت

ورو، ورو د تاریخونو له لیکنو او په ځرګنده توګه د احمدشاه د کړنو له ځرنګوالي ښکاري چې هغه د ښو اخلاقو خاوند او مذهبي لارښوونو او ملي دودونو ته ژمن سړی و. سره له دې چې ډېر کله پراخ واک پر تېرې او تادا اوري خو سره له دې احمدشاه داسې لار غوره کړه چې دنیا ومنو پاچاهانو په لړ کې یې شمېرلای شو، هغه خپلو زامنو ته ویل چې سرغړوونکیو ته د غړیو غوڅونې سزا ورنه کړې او څوک پښتو ته د سرټیټولو په ډول، «لکه زموږ په ځینو ګاونډیو هېوادو کې چې دود و» د رناوي کولو ته پرې نه ږدي. د کوپې ملاسلام کولو پر ځای یې، د سرخواته لاس جګول «لکه زموږ د نن ورځې سلام ورکول» دود کړل او له پوهانو سره یې پر ناستې او مرکه تهنګار کاوه. (۱)

احمدشاه زړور سړی و؛ پر بې جوکو او کمزوریو یې زړه سوی کاوه؛ سرغړوونکي یې ښېل او د ځواکمنو ظالمانو کلک او بې داره دښمن و. پر دیني ټهنګ پلویتوب سربېره یې ملي پلویتوب هم لاره. سره له دې چې په، ملت کې د وګړیو د نېږدې او خواخوږی پلار غوندې و خو بهرنیو دښمنانو او سرغړونکیو ته پر غزګر ځواک ښکارېده.

احمدشاه مېړه او حقوق پوه سړی و، د هېڅ د ښګنې غبرګون یې نه هېراوه ، دده دغه ځانګړتیا د ژوندانه تر پایه د نادرشاه د کهاله او له ده سره د نادر د هملاریو ملګرو

---

(۱) سلطاني، ۱٤۷ مخ.

پر وړاندې لیدل کېږي. احمدشاه ، ډار ، لويي او وړ سترګي نه کوله؛ ښېونکي او لوروونکي و ډېر لګښتي هم ورته نه شو ويلى او ځانګړي ژوند يې پر ته له هر ډول ځانښودنې په ډېره ساده ګۍ کې تېر شو. د احمدشاه تګلار ، تينګه ، هوډمنه او نه ماتېدونکې وه؛ د ژوندانه په بېلا ، بېلو پړاوونو کې يې تېتوالى ، لوروالى ، بند ، خپلواکي ، کشرتوب او مشرتوب ، وليدل؛ له هر راز سړيو او پوړونو سره يې ناسته ولاړه وکړه او د نادرشاه غوندې واکمن تولواک برم وماتې يې وليده.

دغه هر څه يې پر خداى ورکړي ليدو اند اغېزوښيند او خوى او اخلاق يې وردرانه او پاخه کړل. دا هم نه شو ويلى چې احمدشاه هيڅکله په خپله تګلار کې ښوېدلى نه دي ، خو د کړو ډېره برخه يې د ښو اخلاقو ښکارندويي کوي ، له همدې کبله ټولو افغاني تاريخپوهانو د احمدشاه اخلاق ستايلي او ټولو افغانانو هغه د اوليا الله له ډلې ګڼلى چې دا د دغه پاچاه له سترو مانيزو وياړونو څخه شمېرل کېږي ، فيض محمد د عبدالکريم له خولې ليکي چې: نادرشاه به تل په غونډو کې ويل چې په ګرد ايران ، توران و هندوستان کې مې د احمدخان غوندې سم چاري او د ښو خويونو خاوند سړى نه دى ليدلى. (۱)




(۱) سراج، ۹ مخ.

# نهم څپرکی

## د احمدشاه بنه

د احمدشاه د بڼې په اړه څرګند لاسوند راسره نه شته، همدومره پوهېږو چې هغه د روغتیا او ځواني ځواک خاوند سړی و، دایې له تاریخي تېر ژوندانه او جګړه یزو هڅو څخه ښه څرګندېدای شي، ځکه چې احمدشاه لرې هېوادو ته پراس تللی؛ له څپاندو سیندونو تېر شوی او په سلګونو میله ګرندي یرغلونه یې کړي دي، د بېلګې په توګه د ۱۱۷۵ کال په جګړه یزیانه کې چې له پنجابه سرهند ته د سیک ځواکونو پر وړاندې مخکې ته، ۱۳۵ میله لار یې په دوو ورځو کې ووهله. (۱)

تاریخپوهانو د احمدشاه د بڼې په اړه څه نه دي لیکلي او د هغه خپل انځور چې غوځ لاسوند وګڼل شي په لاس کې نه شته، یوازې په هندو پنجاب کې ځیني انځورونه موندل کېږي چې پر احمدشاه اړه لري، له هغوي څخه یو پر ۱۳۱۵ لمریز کال د کابل په خپرونو کې هم چاپ شو. (۲) دغه انځور ریښتینوالي د منلو نه دی، خو دا ترې څرګندېږي چې وګړیو د کیسو او روایتونو له مخې د احمدشاه د بڼې او کالیو په اړه څه اند لاره. دا انځور راښیي چې د احمدشاه کالي له تاریخي څرګندونو سره سمون لري چې په وروستیو کرښو کې به یې ولولئ له هغه نه دا اټکل کېدای شي چې دا انځور به لږ څه

---

(۱) سراج، ۲٦ مخ.

(۲) کالنی، ۱۳۱۵ لمریز کال - کابل مجله، د کابل چاپ، د ۴۱۲ او ۴۱۳ مخونو ترمنځ

احمدشاه ته ورته وي.

(کتلی شئ: دویم انځور) دانځور په لاندې ډول دی: «احمدشاه غوښین مخ، غټې تورې سترګې، جګه پوزه، ورین تندی، توره ږیره، او د شونډو د پاسه بیاتې شوې منځنۍ بریت لرل» سره له دې چې دا انځور نیمایي دی، خو لیدونکی په دې پوهوي چې دانځور خاوند به منځ ونی لنډی سری وي، په دغه انځور کې د احمدشاه کالي په لاندېني ډول ښوول شوي:

پر سر یې لویه پګړۍ او د چورمه یې چپنې د پاسه یې بله ارته برګه چپن هم اغوستې ده چې دا ټول د هاغه مهال د افغاني لوړو پوړونو کالي وو. اوس راته ناشونې ده چې د احمدشاه د څېرې په اړه تر دې ډېر څه ولیکو.



احمد شاه بابای افغان - ۱۱۳۵ - ۱۱۸۶ه

# لسم څپرکی

## د احمدشاه خواږه او اغوستن

د تاریخ په پاڼو کې هیڅ نه لیدل کیږي چې احمدشاه دې ځلبلې ژوند کړی وي، خو زامنو یې چې دا راز ژوند خوښاوه نو تاریخلیکونکیو یې یادونه کړې، د بېلګې په توګه د احمدشاه زوی تیمورشاه په الماسو پسولل شوی خول پر سراوه: پسولل شوی امېل یې اچاوه؛ په ګرانبیو مرغلرو پسولل شوې چپن یې اغوسته او نومیالی الماس «کوه نور» یې پربښې او فخراجی یې پرکښې مټ تاړه؛ پر اس باندې د سپرېدو پر مهال یې په غمیو ښکلې شوې څوکۍ تر پښه لاندې ایښووه، او د سپرلی د اس پر سر یې هم د مرغلرو جوغه ولاړ وه. (۱) د احمدشاه لمسي «زمان شاه» هم د غمیو خول پرسر اوه چې د غمیو څلور جوغې یې لرلې. (۲) د یوه کال په پسرلي کې چې «شاه شجاع» د سیاه سنګ په ډګر کې د کابل وسله وال سرتېري کتل، پر داسې آس سپور و چې د سپینو زرو غوندې سپین اوځنې اولکۍ یې په نکریزو سرې وې؛ لکۍ ته یې د سوچه سرو زرو «په غمیو ښکلې شوې» کړۍ وراچول شوې وه: او د غوږونو ترمنځ یې د یاکوتو او زمرودو خول ځلیده او زین یې په سرو زرو پوښل شوی و چې د لمر پر وړاندې ګرانبیه غمې د ستوریو

---

(۱) سراج، ٤٤ مخ

(۲) سراج، ٥٠ مخ

غوندي پرې ځلېدل. دا د يوه کابلي يوسل و شل کلن سپينږيري (حسين داشي) د سترگو لېدلې پېښه ده چې پر ۱۳۲۸ سپوږميز کال يې د ليکوال پلار ته ويلې وه.

خو د احمدشاه د ژوندانه ځلېلتيا په اړه له يوې خوا تاريخ څه نه وايي او له بلې خوا يې سيمه يز روايتونه هم ساده توب مني. پرگنې وايي چې احمدشاه پر پلاژنه کېناسته او خول يې نه پر سراوه او له توکيز پلوه يې هم ژوندانه له نورو افغاني لوړو پوړو سره دېر توپير نه لاره، مانا دا چې په ودانۍ کې يې غالۍ او توشکونه غوړېدلي وو؛ اغوستن يې پگړۍ، چپن او موزې وې، او په افغاني خوړو سهېده. اوس به وگورو چې هاغه مهال د افغاني لوړ پوړ خواړه څه وو؟

محمد حيات په دې اړه د پاملرنې وړ څرگندونې کوي، هغه د جگ ابدالي پوړ اغوستن داسې راښيي: تر پونديو پورې اوږده چپن، ارت پرتوگ، لوی کيچه ړی[1] غتة پگړۍ، موزې، ملابند، د ملا چاړه، او پر اوږه راځوړنده توره.[2] د هاغه مهال د پاچاهانو او لويانو انځورونه چې يو پر بل پسې موندل کېږي، د محمد حيات دا څرگندونې رېښتينې کوي.

همدا راز د هاغه مهال افغاني لويانو خواړه وو: پلاو، لنده او وچه غوښه، چکنې کباب، پوڅه، مستې، مېوه په ځانگړې توگه ختکې، شربت او داسې نور.[3]

له دې نه اټکلېږي چې د احمدشاه خواړه او اغوستن ساده او له افغاني دود سره سم وو چې له پورتنيو بېلگو يې تېری نه کاوه. د نوموړيو څرگندونو د رېښتينوالي له پاره «په ځانگړې توگه د اغوستن په اړه» بل لاسوند د احمدشاه هماغه مخکې ياد شوی انځور دی.

(۱) چپن ته ورته له وړيو نه جوړ شوی اغوستن دی چې غرني شپانه يې اغوندي، (ژباړن)

(۲) حيات افغاني، ۱۳۰ مخ

(۳) حيات افغاني، ۱۳۰ مخ.

# یوولسم څپرکی

## داحمدشاه دمه نۍ بوختیاوي

ښکاري چې احمدشاه پر هیڅ ډول لوبو او دمو اخته نه و. په تاریخ او سیمه یزو روایتونو کې له ښادیو، لوبو او ان له ښکار سره د احمدشاه د مینې په اړه «چې د پاچاهانو له ژوندانه سره تړلې» څه نه شته. په تاریخ کې د احمدشاه د دربار د کارمنو په لړ کې د «میرښکار» نوم نه دی راغلی. په کندهار کې هیڅ یو لوبغالی، چوتره او بڼ نه شته چې د احمدشاه مېله ځای ورته وویل شي. ده په ګرده پاچاهۍ کې یوازې یوه ورځ ساز وموسیقي اورېدلې او بس. (۱)

په رښتیا هم چې ددومره ساړه ذوق خاوندان پاچاهان« که دهېوادنیو چارو دېرښت یې لامل نه و»؛ لږلیدل شوي خو ښکاري چې همدغه لامل به داحمدشاه ددمې مخه نیولې وي.

تر ډېره د سلطنتي لړیو لومړنې بنسټ اېښوونکي، تکړه سړي وو چې یوازې د پرله پسې هڅو په رڼا کې دغه لوړ ځای ته رسېدلي او د ژوندانه تر پایه یې د خپلو موخو له پاره له دغه کار نه لاس اخیستی نه دی. سربېره پر دې مورږ د احمدشاه یوه دمه نۍ بوختیا پېژنو چې هغه له هېوادنیو چارو نه د وزګارېدو په ترځ کې د هغه شاعري ده، احمدشاه هنری غزل بول شاعر« واقف لاهوری » هم ځو ورځې رابللی، وايي چې« واقف» احمدشاه ته له ورتلو سره سم لاندینی بیت وواېه: (۲)

ندیده هیچکس ظل پیغمبر بحمد الله که ظـــل الله دیدم

ژباړه: (چا لیدلی سیوري نه دي د استازي شکر، شکر چې مې ولید د خدای سیوری)

---

(۱) سراج، ۳۰ مخ. (۲) نګارستان فارسي، د محمد حسین آزاد لیکنه، د لاهور چاپ ۱۹۲۲، ۲۲۶.

# دوولسم څپرکی

## داحمدشاه د «دراني» نومولو لامل

ومو ویل چې احمدشاه پر لویه سدوزي کورنۍ پورې اړه لري. د افغاني تاریخپوهانو د وینا وو له مخې د دې کورنۍ بنسټ اېښوونکی «سدو» د احمدشاه شپږم نیکه و، «راورټي» وایي چې د لسمې لمریزې پېړۍ په پای کې پېژوند کاوه، او نوم یې هم اسدالله یا سعدالله بلل شوی وروسته د «سدو» په بڼه لنډ شوی دی، په هر ډول په یوولسمه لمریزه پېړۍ کې د سدوزي کوچني ونډ نوم ډېر نه یادېده د دغه نامه خپرېدل د احمدشاه د سلطنت له جوړېدو سره تړلي دي، خو کورني او بهرني تاریخپوهان تر ډېر ځایه احمدشاه ته «ابدالي» وایي چې دا د پښتنو د یوې لویې څانګې نوم دی. ابدالي نوم د دې څانګې د ډېروالي په پرتله، دومره پخوانی نه دی او په تاریخونو کې تر اوومه لمریزه پېړۍ پورې نه ښکاري، خو له لومړنیو اسلامي پېړیو راهیسې د پښتنو د نورو څانګو، لکه: سوري، غوري، لودي او نورو نومونو په تاریخونو کې راغلي دي، له دې نه ښکاري چې هاغه مهال ابدالي نوم، د ود یا لې تر لېږه او ځارنه و، او کېدی شي چې هاغه مهال د دې ډلې څانګې په ځانګړیو تېرنیو نومونو پېژندل کېدې. تر دې وروسته ورو، ورور ابدالي نوم اورېدل کېږي او پر نهمه او لسمه لمریزه پېړۍ یې د تاریخ په متونو کې په څرګنده توګه وینو.

نو څنګه په افغانستان کې ناڅاپه دغه څو سوه کلن نوم پر «دراني» واوښت او

احمدشاه سدوزی ابدالي، احمدشاه «دراني» او یا هم «دُر دران» ونومول شو؟ په دې اړه له تاریخپوهانو نه نغښتې او هیښنده خبرې اورو، لکه یو بهرنی لیکوال چې د بل هغه په پښتو، لیکي: د احمدشاه د خوب لیدو له امله، ابدالیانو خپل نوم پر «دراني» واړاوه.[1] ښکاره ده چې ددغه بې بنسټه الواک نه منل څیړنې ته اړ نه دي.

محمد حیات په دې اړه تر دې هم ډېر لیکي او وایي: د افغانستان پر پلار. د احمدشاه ترکښتاستو وروسته صابرشاه نومي روحاني سړي چې احمدشاه ډېر ښه مانه؛ ورته وویل چې «دُر دوران» بل نوم غوره کړي، خو احمد د خپل ټبره د نامه له پېام کې نېولو سره «دُر دُران» هغه غوره کړ.[2] په دې مانا چې ابدالي ځانګه یې «دران» او «دراني» او ځان یې «دُرِ دران» ونوماوه.

فیض محمد هم دې ته ورته، پر سلطان محمد پسې د خبره متي.

په هر ډول، ښایي وویل شي چې د «در دران» نوی نوم په هیښنده چټکۍ د یوې بې بنسټه ترنې له مخې پر «دُر دران» واوښت او په رسمي څېرونو او دیني دریځونو کې یاد شو. افغاني تاریخپوهان وایي چې احمدشاه پر خپله تاپه چې د طاوس بڼه یې لرله او صراحی ته ورته وه، دغه لیکنه وکړه: «الحکم للّه یا فتاح، احمد شاه در دراني»[3] تر دې وروسته احمدشاه ته پر «دُر دران» او دراني پاچاه ویلو سربېره ټول ابدالي ټبرد «درانیو» په نامه ونومول شو.

د احمدشاه د پاچاهی پر هماغو ورځو په کورنیو ژبو او لیکنو کې د «ابدالي» پر ځای «دراني» نوم وکارول شو.[4]

---

(۱) د ایران لنډ تاریخ، د «سرپرستي سایکس» لیکنه، د اصفهان ژباړه او چاپ، ۷۸، نېټه یې نه شته، لومړی ټوک. کېدای شي چې «سرپرستي» دا کرښې له «مېلسن» نه زده کړې وي. ضیاءالملت والدین وایي: دا خوب نوماندولې «چکني» لیدلی و، نه احمدشاه او ده له همدې کبله «در دران» بل نوم غوره کړ، تاج التواریخ، د امیر عبدالرحمان خان لیکنه، د بمبیې چاپ، ۱۳۲۳ ل کال، دوی ټوک، ۷ څپرکی، ۱۵۲ مخ.

(۲) سراج، ۱۰ مخ، سلطاني ۱۲۳ مخ

(۳) سراج، ۱۱ مخ، سلطاني ۱۲٤ مخ.

(٤) کتلی شئ: په حجاز کې د افغاني حاجیانو د ودانۍ ډېر برلیک په اړه لیکنه، کابل مجله ۱۳۱۱ کال د خپرېدو دویم کال، دویمه ګڼه.

# د يارلسم څپرکی

## د احمدشاه ماندينې او بچيان

زموږ په تاريخونو کې د احمدشاه د ماندينو شمېر د ښځو په اړه د هماغې ښځاېه چوپتيا له امله، ناڅرګند دی. د زامنو په اړه يې هم نه وايي چې له يوې موره وو، که له بېلا بېلو، ځکه نو د احمدشاه د مېرمنو شمېر تاکنه ستونزور کار دی خو دا چې دی متشرع سړی و، ويل کېداي شي چې پر يوه مهال يې د ښځو شمېر تر څلورو ډېر نه و، خو دا چې څه نوميدې، له کومو کورنيو وې او څه مهال واده شوي؛ څرګنده نه ده. موږ د احمدشاه له مېرمنو څخه يوه چې شاهزۍ «بيګم» نوميده او د هندوستان د شاهنشاه محمدشاه ګورګاني (۱۱۳۱-۱۱۶۱) لور وه، ځکه تر نورو ښه پېژنو چې نوميالۍ کورنۍ يې وه، ددې نجلۍ مور د «صاحبه محل» په بلنامه يادېده او د هندوستان په پلازمېنه کې يې له احمدشاه سره واده شوی دی خو دا چې احمدشاه له شاهزۍ بېګم نه بچيان لرل که نه؛ څرګنده نه ده، محمد حيات د احمدشاه د لومړنۍ ماندينې (د شاهزې تيمور مور) په اړه څرګندنه غبږي، دی ليکي: احمدشاه د جلال آباد د بهسودو د عربانو د سردار له لور سره واده وکړ او تيمورشاه ترې وزېږېد. [1] محمد حيات هډو د نجلۍ نوم، پلار، او دواده نېټه نه يادوي.

دا چې احمدشاه په کوچنيوالي کې زنداني شوی؛ په ګلميتابه کې پارس ته لاړ دی

(۱) حيات، ٤٤٦مخ

او شهزاده تیمور هم هماغلته زیږېدلی نو ښایي دا ومنل شي چې د شهزاده له مور سره یې هم په پارس کې واده کړی دی.

دا اټکل لرې نه دی چې د احمدشاه خسر چې د جلال آباد له سیمه یزو سردارانو څخه و او د هغو افسرانو په ډله کې راتلو چې له نادرشاه سره له جلال آباد و خیبر نه د تېرېدو په ترځ کې (۱۱۵۱ کال) رابلل شوي او په بدرګه منل شوي وو، دی هم همدا مهال په نادري اوردو کې منل شوی او څه موده وروسته پارس ته ورسره تللی. لور یې هماغلته له احمدشاه سره واده کړی او تیمور ترې زیږېدلی دی. ددغه اټکل له منلو سره سم ویلای شو چې احمدشاه د سردار لور پارس ته د نادر تر ستنېدو وروسته (۱۱۴۵ کال) واده کړه او تیمور د احمدشاه د پاچاه کېدو پر مهال (۱۱۶۰ کال) لا اووه کلن شوی نه و.

د احمدشاه بله میرمن هم د عبدالکریم د وینا له مخې پېژندلې شو، نوموړی وایي چې «شاهزی سلیمان» د «شاهزي تیمور» میرنی ورور دی. دا چې سلیمان د احمدشاه دویم زوي دی، بویه وویل شي چې مور یې هم د احمدشاه دویمه ماندینه وه او کېدای شي چې په کندهار کې یې واده کړې وي ځکه چې شهزاده سلیمان په کندهار کې زیږېدلی او د احمدشاه د پاچاهۍ پر مهال مخکې تر دې چې دهند له شاهزي «بیګم» سره واده وکړي په کندهار کې پاچاه شوی و.

تر دې اخوا نه پوهېږو چې د احمدشاه نور زامن له همدغو درېیو ماندېنو څخه وو که د بلې مور یا نورو میندو څخه زیږېدلي دي. د احمدشاه د لوریا لونو په اړه هیڅ څرک نه شته، په تاریخونو کې یې د لونو د زوکړې، نومونو او ودونو په اړه او یا هم د احمدشاه د زومانو په اړه هڅه نه موندل کېږي.

## د احمدشاه زامن دا دي:

مشر زوی تیمور، دویم زوی سلیمان، سکندر، داراب و پرویز (د ابن محمد امین د وینا له مخې تر ټولو کشر). ابن محمد امین شاهزی سکندر د احمدشاه ځای ناستی او تر هغه وروسته یې د تیمور پر مهال په ناسته ولاړه کې د پاچاه همغاړی ګڼلی دی.(۱)

څرګنده ده چې دا تاریخلیکونکی د سکندر د ځای ناستي په اړه تېروتی، خو بیا هم دده وینا دا څرک لګوي چې تیمور و سکندر به له یوې او سلیمان و پرویز به له بلې موره

---

(۱) مجمل ۱۴۸ او ۱۵۲ مخونه.

وي، په دې توګه د نورو تاريخونو چوپتيا د دې مخنيوی نه کوي چې شهاب و داراب دې د هندوستان د پاچاه د لور زامن وګڼل شي، ځکه چې اوس موږ ته د احمدشاه د ځلورمې ماندينې پته نه شته.

په هر ډول، تيمور د پلار له خوا د پنجاب تر نايب الحکومه توب وروسته د هرات نايب الحکومه تاکل شوی او د خوراسان د ولايتونو د څارنې دنده يې لرله.

سره له دې چې احمدشاه د سلطنت تر پايه ځای ناستي تاکلی نه و، خو د خپلې ناروغۍ تر کلکوالي وروسته يې ملکي او پوځي مشرانو ته تيمور په دغه نامه ور وپېژاند.

تو به غر ته د احمدشاه تر تګ وروسته، سليمان هم څه مهال د کندهار د حکومت وکيل شو؛ خو سکندر د پلار د واکمنۍ په وروستيو کې د پنجاب پر نايب الحکومتوب وټاکل شو او د سپه لاسار جهان خان په ملتيا هغې سيمې ته وخوځېد، خو لا په پېښور کې و چې د احمدشاه د مړينې خبر يې واورېد او د تيمور شاه له لاربښوونې سره سم کندهار ته راستون شو. [1] پرويز هم د احمدشاه د سلطنت په وروستيو کې د کابل واکمني لرله. او د پلار تر مړينې وروسته کندهار ته وغوښتل شو [2] خو د شهاب و داراب په اړه څه ويل شوي نه دي.

(۱) مجمل-۱۵۲مخ.

(۲) مجمل ۱۵۲مخ.

# څوارلسم څپرکی

## داحمدشاه همهالي او ګاونډي پاچاهان

د احمدشاه پر مهال د افغانستان شمالي ګاونډي هېواد (بخارا) د استراخاني اوزبکو د يوې کورنۍ «چې د جنيديه لړۍ نوميده» په واک کې و. د دې کورنۍ لسو تنو پاچاهانو له ۱۰۰۷ تر ۱۲۰۰ هجري کال پورې واک چلولی خو په پای کې پاچاهي کورنۍ بې جوکې شوه او د دربار مشرانو په ځانګړې توګه مانغيت مغولانو د دولت واګې ونيول او په مادون النهر کې يې بلواوې پيل کړې. احمدشاه پر ۱۱۸۱ هـ کال چې وزير شاه ولي خان د اردو کوماندان و له جيحونه په اوښتو هغوي ولړځول او پر ته له جګړې يې پر خپل ځای کېنول.

د بخارا د جنيديه لړۍ لاندېني مشران د احمدشاه همهالي وو:

عبدالمومن د ناستي کال ۱۱۶۰ هـ، دويم عبدالله د ناستي کال- ۱۱۶٤ هـ. محمد رحيم (د مانغيت مغولو له لړۍ څخه) د ناستي کال ۱۱۶۷ هـ. عبدالعزيز (د جنيديه کورنۍ وروستی پاچاه) ل ۱۱۷۱ تر ۱۲۰۰ هـ پورې.

سلطان محمد او فيض محمد چې «شاه مراد» د بخارا پاچاه او د احمدشاه همهالی ګڼي، تېروځي، «معصوم شاه مراد» د مانغيت مغولو د لړۍ لومړنی سړی دی چې د جنيديه کورنۍ پر ځای کېناست او له ۱۲۰۰ تر ۱۲۷۷ هـ کال پورې يې شپږو تنو واکمني کړې ده. شاه مراد له ۱۲۰۰ هـ کاله تر ۱۲۰۷ پورې پاچاهي کړې، ځکه نو

نوموړی د تیمور شاه افغان هممهالي و، نه د احمدشاه بابا. احمدشاه تر ۱۱۷۱ هـ کال پورې په پارس کې یو تاکلی هممهالی نه لاره، ځکه چې د نادر تر مړینې وروسته دغه هېواد د خپلمنځي اور په لمبو سوزېده او د تېرواکۍ دود په کې راژوندی شوی و. په آذربایجان کې د پښتنو غلزیو خان «آزاد» له پېنځلسو زرو سرتېرو سره، په استرآباد کې «حسن خان» کاجار او په عراق کې «کریم خان زند» واکمنان وو.

له ۱۱۷۱ کال وروسته «کریم خان» د ټول هېواد پاچاه شو چې د احمدشاه تر مړینې یې همهالی ګڼل کېږي، دغه سړی د بر خوبن و چې احمدشاه پر خپل ټول ځواک سربېره، د هغه په هېواد کې لاس ونه واهه.

خو د هند دولت چې د اورنګزېب تر مړینې وروسته مخ پر ویجاړېدو و، د احمدشاه پر مهال ړنګېدو ته نېژدې شو، ځکه چې د هند پاچاهان پر بنځو او چړچو لګیا وو؛

• وزیرانو او نورو مشرانو لومې غځلوې او ځانګړې موخې یې غوښتې او د ولایتونو واکمنو خپل واګ تېنګاوه. د راجپوت، جټان او مرهټیان د سلطنت ړنګولو او هېواد لوټلو له پاره راپورته شوي وو، که د احمدشاه مېړانه او مرسته نه وی، هندي دولت به د مرهټیانو په لومړي یرغل راپرځېدلای و.

د احمدشاه همهالي هندي پاچاهان دا دي:

ابوالفتح ناصرالدین محمدشاه خجسته اختر غازي پاچاه شاهجهان ۱۱۳۱-۱۱۶۱ هـ، مجاهد الدین احمدشاه د محمد شاه زوی ۱۱۶۱- عزیزالدین دویم محمد عالمګیر د معزالدین جهاندار شاه زوی ۱۱۶۷- ابوالمظفر جلال الدین عالي ګهرشاه عالم غازي پاچاه ۱۱۷٤-۱۲۲۱ هـ.

# دویمه برخه

# پینځلسم څپرکی

## د احمدشاه ژوند لیک د هغه تر پاچاهۍ پورې

احمدشاه پر ۱۱۳۵ هـ وزیږید او پر همدغه کال یې پلار «زمانخان [د هرات د حکومت مشر]» مړ شو. مور یې احمد شاه له ځان سره یو ځای له هراته فراه ته بوت.[1]

د احمدشاه مشر ورور ذوالفقار خان هم ښوراوک (د فراه او ګرشک ترمنځ) ته لاړ، ځکه چې د «ملي سلا جرګې» له خوا د زمانخان پر ځای د پخواني مشر عبدالله خان ابدالي زوی، محمد خان تاکل شوی و. نوموړي د خپلې کورنۍ تاریخي سیالې (د زمانخان کورنۍ) ته ښه نه کتل.

تر دې وروسته د احمدشاه په اړه څرک نه شته او د ورور ذوالفقار خان په سفرونو کې یې «د احمدشاه د کوچنیوالي له کبله» نوم نه لیدل کېږي، خو ذوالفقار خان پر ۱۱۳۶ کال د هرات مشر وټاکل شو او له ښوراوکه د فراه له لارې هرات ته راغی.

دوه کاله وروسته (۱۱۳۸) جرګې دی د «باخزر» د حکومت مشر او ځای یې د

(۱) حیات، ۱۲۷ مخ

مخکې یاد شوی محمد خان ورور «الله یارخان» ته ورکړ، خو له باخرزنه هرات ته د ذوالفقار خان تر لښکرو یستنې وروسته، جرګې الله یار خان د فراه حکومت ته ولیږه او ذوالفقار خان یې د «مروچاک» پر حکومت وټاکه. که تر دې مهاله احمدشاه له خپلې مور سره په فراه کې و او له ذوالفقار خان سره یوځای شوی نه و، نو فراه ته د الله یار خان تر راتګ وروسته، هرو مرو له هغه ځایه وتلی او مروچاک یا بل ځای ته تللی دی.

پر هرات باندې د نادرشاه خوراساني د یرغل له ګنګوسي سره سم، جرګې پر (۱۱۳۹) کال بیا له فراه نه الله یار خان راوغوښت؛ د حکومت مشر یې وټاکه او ذوالفقار خان یې د فراه حکومت ته ولیږه، خو په دې نه پوهیږو چې دا مهال احمدشاه چېرته و.

د هرات نیولو له پاره د نادر د جګړو په ترڅ کې چې له ۱۱۳۹ تر ۱۱٤۱هـ کال پورې اوږدې شوې؛ ذوالفقار خان له فراه نه هرات ته راغی او د خپل کورني سیال الله یار خان په مرسته د نادر پر وړاندې پر جګړه بوخت شو، دلته بیا هم د احمدشاه نوم نه لیدل کیږي ځکه چې دا مهال هغه شپږ یا اووه کلن هلک و.

تر سولې او پارس ته د نادر تر ستنېدو وروسته، ذوالفقار خان پر ۱۱٤۲ کال یو ځل بیا له فراه نه هرات ته لښکر وخوځاوه چې په پای کې د جرګې په پرېکړه د هرات مشري ورکړ شوه او الله یار خان مروچاک ته ولیږل شو. تر دې وروسته موږ په څرګند ډول احمدشاه په هرات کې مومو.

د ۱۱٤۳ کال په پای کې نادرشاه له دېرشو زرو جګړه مارو سره پر هرات یرغل وکړ خو ذوالفقار خان هغه پټه مپاشتې وساته، دا مهال ذوالفقار خان پوه شو چې د الله یار خان ګوند د ښار په منځ کې د هغه د ورکولو له پاره کار کوي، ځکه جرګې ته خپله استعفا وړاندې او څرګنده یې کړه چې اوس له پارس سره جګړه روانه ده، خپله مشري پرېږدم چې کوچنی شخړه د سترورانې لامل نه شي.[1] جرګې پخوانی مشر الله یار خان بیا وټاکه او ذوالفقار خان له خپلې کورنۍ او ورور (احمدشاه) سره له هراته ووت او فراه ته لاړ.

ذوالفقار خان په فراه کې ساتونکي افغانان د نادري جګړه مارو پر وړاندې

---

(۱) سلطاني، ۱۱٤مخ

ځواکمنول، خو چې د الله يار خان د ماتې او د نادر د بري غږ يې واورېد، له خپل کشر ورور احمدشاه سره پر هماغه ۱۱۴۴ کال له فراه نه کندهار ته لاړ.

احمدشاه په کندهار کې هيښنده برخليک لاره او د تقدير له غوښتنې سره سم اړو چې د خپل ژوندانه خورا تياره شېبې همدلته تېرې کړي، هماغسې چې ښايي د خپل ژوندانه پر مختلفو ورځو يې هم له هماغه ځايه پيل کړي واي.

په هر ډول، د ميرويس نيکه د کورنۍ (هوتکيان) وروستي واکمن «شاه حسين» چې د نادر په لاس د هرات له نيولو نه خبر شو او له ابدالي ټبره سره يې د هغه ښه چلند وليد؛ شکمن شو او د دغې ځانګې نوميالي مشر «ذوالفقار خان» يې بندي کړ، احمدشاه هم چې نېژدې لس کلن هلک و له خپل ورور سره يو ځای د زندان پرووره ورننووت. تر دې وروسته د احمدشاه د ژوندانه يوه برخه د کندهار په دولتي زندان کې تېره يې ده د زندان په انګړ کې نېژدې شپږ کاله بې غږو غوره غلی ژوند لاره، تر هغې چې پر ۱۱۵۰ هـ کال، نادر شاه کندهار ښار ونيو او بنديان يې خوشې کړل، احمدشاه هم چې نېژدې شپاړس کلن زلمی و د نورو هغو په څېر له بنده راووت.

شاه حسين هم د خپلو لويو سياسي تېروتنو خوند وڅاکه. هغه د پارس د افغاني شاهنشاه «ميراشرف» «چې له نادر سره پر جګړو بوخت و» ملاتړ و نه کړ او چې نوموړی شاهنشاه د نادر پر وړاندې د لښکر جوړولو او تيښتې له پاره کندهار ته راغی، د خپلې يوې ډلې سپرو په لاس يې د کندهار په جنوب لوېديزه سيمه کې وواژه او په خپل دغه چارې «چې د افغاني خپلمنځي شخړو درنځوري يوه ښکاره بېلګه ده» د هوتکي نوي دولت بنسټ ته کلک ګوزار ورکړ. وروسته تر دې چې نادرشاه پر هرات باندې د يرغل له امله زورور شو، شاه حسين بيا هم د ډېرو زړو مرستندويو سپرو له لېږلو پرته د نادر پر وړاندې د هرات له ابدالي حکومت سره بله هيڅ مرسته و نه کړه او د دغې دويمې ناوړه چار له امله د هرات په ماته کې اغېزناک شو. نادر چې کندهار ته راوړاندې شو، شاه حسين يوازې او د ټولو شاه اشرف پلويو غلزيو او ابداليو مشرانو له مرستو نا هيلی و ځکه يې د نادر شاه پر وړاندې ماتې هم ښکارنده وه، د ساري په توګه اشرف سلطان غلزی چې د توخيو سپرو مشر و، د کلابندۍ په ترڅ کې له شاه حسين څخه جلا او له نادر سره يو ځای شو او خپل مشر ته يې د غه دروه يې د هغه د ناوړه سياست تر ملاتړ غوره وګڼله.

سربېره پر دې هم شاه حسین چې زوور او خپلسري سړی و، په لږ شمېر سره څه د پاسه یو کال د نادر پر وړاندې وجنګېد.

نادرشاه چې د ۱۱۴۹ له ذي الحجې نه د ۱۱۵۰ تر ذي الحجې پورې د ډېوالو او د ګر پرچګرو بوخت و، د کندهار له زاړه ښار نه یې لویه کړی راچاپېره او څو ځایه یې په یوه میلې واټن کې کوچنې پوځي کوټونه جوړ کړل چې په هر یوه کې زرسا تونکې ځای پر ځای وو. د دغو کوټونو ترمنځ یې هر سل ګامه وروسته نور برجونه جوړ کړل چې هر یو یې په لسو سرتېریو ساتل کېده.

نادرشاه له پلازمېنې دوه میله لرې ختیځ خواته د یوې سترې پوځي چاونۍ بنسټ کېښود؛ د ډېوالونه، برجونه، استوګنځی، جومات او څو ودانۍ یې جوړې کړې؛ د «نادر آباد» په نامه یې ونوموله، او په خپله د اوردو له سترې برخې سره ورته راکښته شو.

نادر د سپرو کنډکونو په بریدونو، د کلات د غلزیو، بست، ګرشک، زمینداور او نور پوځي غونډونه مخکې نیولې او د شاه حسین د اړیکیو کرښې یې له هره ځایه پرې کړې وې، خو خپل اړیکي یې له هرات، خوراسان و پارس سره ټینګ وو؛ د کندهار ښار د شا تنیو غرونو لوړې څوکې یې نیولې وې او د پلازمېنې منځ یې تر اور لاندې ونیو. په دې توګه ښار تر درنې مرینې ژوبلې وروسته، لاندې او د کوڅو په منځ کې وژنې پیل شوې، شاه حسین له سلطنتي کورنۍ سره د غره څوکې ته چې د ښار سهیل لوېدیځ ته وه؛ وخوت او وروستۍ هڅې یې پر مخ بوتلې، خو هر څه له لاسه تللي وو، په پای کې ده او کورنۍ یې ځانونه وسپارل او مازندران ته وشړل شول. نوموړی پر ۱۱۵۴ کال هماغلته په سنګیا ووژل شو.

نادر د کندهار ښار چې د هندوستان پر لار پولادین ډال و، روغ پرې نه ښوو او ړنګ یې کړ. دغه کلک ښار د سرپوزې د غره په ختیزه لمن کې پروت او له دریو خواوو ژورې کندې، برجونو او ډېوالونو له ړبونده څمکې څخه بېلاوه؛ د نېغ او ستونزور غره لړی له لوېدیز لورې ساته چې پر لوړو څوکو یې پوځي چاونۍ وې او په دوو ډېوالونو سره پر ښار پورې نښتې. بالاحصار او سلطنتي ارګ د ښار په منځ کې لږ څه شمال خواته د یوې ټوټې لوړې څمکې پر سر ودان شوي وو چې پلن د برین بنسټونه یې لرل او «نارنج»



عکس نمبر ۳ خرابه زار شهر قدیم قندهار

نومېده. د نارنج د شمالي اړخ پلن دېوال د ښار له ختيځ دېواله سره نښتی او پلازمېنه يې پر دوو (شمالي او سهيلي) برخو وېشله. شمالي برخه چې کوچنۍ وه د دولتي زېرمو، ځانګو او پوځي اډې له پاره وه او سهيلي برخې پر ښارياڼو پورې اړه لرله. د غره څوکې له سهيل لوري يو لوړې په خپلو برجونو و دېوالونو ښارڅاره او ساته چې قيتول»[1] نومېده.

نن هم د ښار دېوالونه، برجونه، نارنج او قيتول لږ څه پاتې دي چې په ځلورم انځور کې ښوول کېږي.

وروسته تردې چې نادرشاه کندهار ښار ونيو او رنګ يې کړ، افغاني مشران يې د هغوی د ځيلې سرچينه په مينه ومنل، د ساري په توګه عبدالغني خان الکوزی يې په هرات کې د ابداليانو د مشر په توګه وټاکه، په کندهار کې يې هم نورمحمد خان غلزی «ځينو تاريخ ليکونکيو په نامسم دول عليزايي ليکلی» د «مير افغان» په بلنامه د غلزيو مشر او د خپلو بدرګه والو افغاني سرتېريو کوماندان وټاکه. همدا راز يې افغاني مشران و کارمنان د نيول شويو ولايتونو (هرات، کندهار) پر حکومتونو وټاکل، لکه: حاجي اسمعيل خان الکوزی او اشرف خان غلزی او داسې نور چې د شينډنډ و کلات حکومتونو او د فراه او ګرېشک سيمو ته ولېږل شول.

سربېره پر دې نادرشاه ګڼ شمېر افغاني سرتېري هم په خپل اردو کې ومنل چې ځينې تاريخپوهان، لکه محمد مهدي او ابن محمد امين يې شمېر ځلوېښت زره ليکي، خو نور د هر يې شپاړس زره ښيي چې دوولس زره ابداليان او څلور زره غلزيان د افغاني مشرانو تر مشرۍ لاندې او ټول د افغاني نورمحمد خان په لارښوونه د نادر په بدرګه خوځېدل، دوی ليکي چې: هغوی مره داد چې نادرشاه پر افغاني سرتېريو لاره، پر پارسيانو يې نه لاره، افغانان هم له ده سره په نيولو کې يوځای وو او د ډېره توره يې وکړه.

رښتيا دا ده چې د پارسي تاريخپوهانو پر ليکنو سربېره چې نادرشاه يو پوستين ګنډونکی تورکمن او يو نالوستی سړی و[2] هغه د خوراسان اوسېدونکی، سني مذهبه او د بشپړ عقل، هوډ او ازمېيښت څښتن و. نادرشاه په خوراسان کې روزل شوی او له

---

(۱) په تورکي مغولي ژبه، لښکري اډې او کوټ ته وايي. (ژباړن)

(۲) تاريخ ايران، د ميرزا حسين خان فروغي ليکنه، د پارس چاپ، ۱۳۱۸ سپوږميز کال، ۳۲۸ مخ، همدا راز تاريخ عمومي، د ميرزا عباس خان اقبال ليکنه، څلورم ټوک، ۲۱۰ مخ.

افغاني ملک محمود خان سیستاني سره یې د اړیکو په ترخ کې پوهه تر لاسه کړې وه، نوموړي د افغاني سلطان محمود په ښهر ستره اروا لرله او غوښتل یې چې پر گرده منځنۍ اسیا واکمني ولري، ځکه یې د خپلو نو پر لري کولو پیل وکړ او تر هرڅه یې لومړی مذهب ته پام شو، په دې مانا چې مذهبي بېلتون یې د سیاسي یووالي د ماتې لامل گڼه، تر هرڅه لومړی یې د پارس سلطنت ته رسېدل، د هغه هېواد د لویانو په جرگه کې د تشیع له پرېښوولو او حنفي مذهب له منلو سره اړوند کړل.

نادرشاه وکړای شول چې د افغانانو مینه راکاږي، افغانانو هم د هند په نیولو، په لویدیځ کې د تورکانو په ماتولو او د داغستان په ښکیلولو کې ونډه واخیسته، دا هماغه داستان دی چې سلطان محمد، شیرمحمد، محمد حیات او داسې نور تاریخپوهان یې لیکي.

نادر له افغانانو سره دومره نېږدې و چې د پارسي افسرانو د کرکه یې راوپاروله، ابن محمد لیکي: د پارسي مشرانو په لاس د نادر د وژل کېدو یو لامل له افغانانو سره د نادر په دربار کې د هغوی سیالي وه. نادر شاه غوښتل هغه پارسي مشران چې ده ته له اند سره سم نه وو، له منځه یوسي، په دې اړه له افغانانو سره وغږېد، افشار او پارسي سرداران چې په پېښه وپوهېدل، د نادر پر وژلو یې لاس پورې کړ. (۱)

افغانانو هم هیڅکله نادرشاه هېر نه کړ، ان تر مړینې وروسته یې هم کور او سلطنتي کورنۍ د پارس اوردو له لوټ څخه وژغورل او د هغه وریرونه (علي شاه او ابراهیم شاه) یې په هماغه هېواد کې د دښمنانو پر واندې پیاوړي کړل. دا ټکي له هغه لیک څخه چې د «قم» د بلوا گرو مشر «میرسیدمحمد» ابراهیم شاه ته لیکلی و او د نادر له مهاله یې ترخپل مهاله پورې له افغانانو سره د اړیکو له امله گیله کړې وه؛ ښه څرگندیږي. (۲)

احمدشاه ته راځو: نادر د کندهار تر نیولو او له وگړیو سره تر پېژندگلوۍ وروسته له خپلو تولو افغاني دښمنانو څخه یوازې «سیدال ناصري» وځاپه، دی د هوتکیانو پرمهال د پارس په جگړو کې نومیالی افغاني جرنیل و، نادر چې پر دغه سرغړاو افسر داد نه شو کړای، نو ړوند یې کړ، همدا راز له ذوالفقار خان څخه هم چې یاد سړی و د هر

(۱) مجمل ۱۴-۱۵ مخونه.

(۲) مجمل ۴۲ مخ.

داریده، خو دا چې هند ته یې تګ په مخکې و، هغه ته یې تنخا او جاګیر ورکاوه او تاکل او په مازندران کې یې منښت کړه، احمدشاه هم او س مهال له وروو سره وخو څه او ده وي کاروان د ۱۱۵۱ کال په پیل کې د پارس خواته لاړ.

نادرشاه د هند تر نیولو ، افغانستان ته تر راستنیدو، د بخارا تر تګ او د خوارزم تر نیولو وروسته پر ۱۱۵٤ کال خوراسان ولایت ته راغی،دغه ځای ته د راتلو په ترڅ کې یې د هیواد مخور له هرې خوا هر کلي ته راغلل، په دغه لړ کې یو هم افغان احمدشاه و چې له مازندرانه د نادر لیدو ته راورسید. دا مهال احمدشاه شل کلن از میلي زلمي و، نادرشاه دی د افسري ور وباله او د خپلو افغاني بدرګه والو سرتیریو په ډله کې یې ومانه. نادرشاه چې د هند ، بخارا او خوارزم په جګړو کې یې د افغانانو زړورتیا ډیره خوښه شوې وه، تر هغې وروسته یې افغاني افسرانو او سرتیریو ته ځانګړي پاملرنه کوله، د نادرشاه د دغې پاملرنې له امله احمدشاه وکړای شول چې د دندو په سمبالولو کې خپله ورتیا وښیي، خو تر اوسه لا احمدشاه یو افسر و او د ټولو افغاني سرتیریو کوماندان هماغه نورمحمد خان غلزی ګڼل کیده. احمدشاه په لنډه موده کې وکړای شول چې د خپل ښه چلند او اخلاقو له امله د افغاني سرتیریو ، په ځانګړي توګه د ابدالیانو د دا و درناوي ور شي. سربېره پر دې تیرني ګډون او د پلارو ورور نامه هم په دې اړه اغیز لاره. بې اړینګه چې احمدشاه په داغستان و ایروان کې د نادرشاه په جګړه یزو سفرونو کې په پوره میړانه د پوځي دندو د سرته رسولو له پاره هڅې وکړې او له دې امله یې د نادر په دربار کې غوره ځای ونیو. شیرمحمد خان په داغستان کې د احمدشاه د توري یادونه کوي.[۱]

احمدشاه د نادرشاه د واکمنۍ په وروستیو کې د هغه له نومیالیو او ډاډمنو افسرانو څخه و او د نادر په بدرګه والو افغاني سرتیریو کې تر نورمحمد خان غلزي (میرافغان) وروسته، لومړنی سړی ګڼل کیده، ان تر دې چې د نادرشاه د مړینې پر مهال، سربېره پر دې چې احمدشاه د ټولو افغاني ابدالیو کنډکونو کوماندان و، د اوزبکو سپاره کنډکونه یې هم تر لاس لاندې وو.

احمدشاه له ۱۱۵٤ تر ۱۱٦۰ پورې شپږ کاله له نادرشاه سره په تګ راتګ کې

(۱) خورشید، ۱٦۸مخ.

یوځای و. بنایي دا ومنو چې د هېواد مشري په اړه د احمدشاه د پوهې یوه برخه د هماغو ورځو پایله ده چې دا تکې د دواړو لویو پاچاهانو په ځینو سیاسي او پوځي چارو کې په پرتلیز ډول لیدل کېږي. هغه څه چې د دغو دواړو ترمنځ توپیر جوتوي دا دی چې نادرشاه تر هغو ټولو ارزښتمنو خدمتونو وروسته چې د پارس له پاره یې وکړل، له بده مرغه یې د ملت په زړه کې خپل گرانښت او لویوالی د ژوندانه تر پایه ونه ساتلای شو، خو احمدشاه خپل ملت ته د ځرگندو خدمتونو له امله وکړای شول چې ان تر مړینې وروسته هم خپله مینه او گرانښت د هغه په زړه کې ژوندی وساتي.

# شپاړسم څپرکی

## احمدشاه څنګه د افغانستان پاچاه شو؟

څرګنده شوې چې نادرشاه د ژوندانه په وروستيو کې روغتيا يې او تا با يلله او د بوې ناپامۍ او پرغز په ترڅ کې يې خپل ځای ناستی زلمی زوی «ميرزا رضاقلي خان» ړوند کړ، تر دې وروسته پرله پسې غمونو او يو لړ خيانتونو چې په هغه هواد کې روان وو، دده مزاج تريخاوه، ځکه يې د خلکو پر ځورولو پيل وکړ او په کوچنی ګناه يې لويه سزا ورکوله. وګړي د هغه له مصادرو، ربړولو او بې شمېره وژلو نه پوزې ته راغلل او وسله وال پاڅون يې پيل کړ. شيروان، تبريز و استرآباد يو پر بل پسې سرغړاو شول. دغو خوځښتونو د نادر پر غز نور هم اورنی کړ او چې له خپل آرتاتوبي او پلارميني خوراسان ته تلو؛ په لار کې يې د وګړيو له کوپړيو غونډۍ جوړې کړې، سرېېره پر دې يې وغوښتل چې خپل زامن نصرالله خان و امام قلي خان تر ښار لاندې نادري کلات ته ولېږي چې خلک يې د وراره ميرزا علي قلي خان غونډې، د ده پر وړاندې و نه پاروي او وريسې لوی پارسي مشران او چارواکي چې د خپل سياست مخالف يې ګڼل؛ له منځه يوسي. نادر خپل دغه هود د ځانګړيو پرېکړو په غونډه کې له خپلو باوري سرېو او لويو افغاني مشرانو، لکه نورمحمد خان غلزي، احمد خان ابدالي (احمدشاه) او نورو سره چې ده ته د ښي لاس غونډې وو؛ څرګند او غوښتل يې چې ددوي په لاس يې پلی کړي، خو د نادر

پارسي دښمنان چې دارن او په کمين کې وو، له دې غونډې نه خبر او د ځان له وېرې يې د هغه وژلو ته ملا وتړله. په پای کې د غه نوميالی پاچاه د ۱۱۶۰ سپوږمیز کال د جمادی الاخر پر ۱۱ د يکشنبې پر شپه «خبوشان» ته نېژدې د «فتح آباد» په استوګنځي کې د محمد خان کاجار، موسی افشار، خواجه بېګ افشار، صالح قرقلوي او نورو اوبا افسرانو له خوا ووژل شو. د پارس اوردو هم د نادر د کاله او خوندېنو د لوټلو له پاره له ځايه وخوځېد، خو افغان احمدشاه د دغه خبر تر اخيستو وروسته له افغاني سپرو ټولګيو سره د نادرشاه د کاله ساتلو له پاره پوځي لارې چارې ونيوې او سمدلاسه د افغاني ځواکونو د کوماندان نورمحمد خان (ميرافغان) له خوا د غلزيو او اوزبکو په ټوليو پياوړی شو.

پارسايانو جګړه ونه کړه او سرسري سمون منځته راغی. سهار د نادرشاه د ماندينې له خوا احمدشاه ته د هغه د مړينې ملاتړ له امله ځينې ډالۍ ورولېږل شوې چې په هغو کې يو هم نوميالي الماس (کوه نور) و. (۱)

احمدشاه چې د افغانستان له پاره يې ستر آرمان لاره، پر ته له دې چې نور د پارس په کورنيو چارو کې لګيا شي، له کوماندانان نورمحمد خان او ټولو افغاني ټولګيو سره د هرات له لارې کندهار ته وخوځېد، خو له بده مرغه چې د نادرشاه ماندينه (ملکه) او

---

(۱) نن هم «کوه نور» د نړۍ له لسو پېنځلسو نوميالیو الماسونو څخه دی، سره له دې چې دا تيږه د تاريخ له مخې د هندوستان ده، خو تر ډېره ځايه نړۍ ته افغانانو ورپېژندلې، مانا دا چې د هند شاهنشاه علاوالدين افغاني خلجي د ۷۰۹ کال په جګړه کې پر «مالوا» بری وموند او د هغه د نورو زېرمو په لړ کې يې «کوه نور» هم تر لاس واخيست، تر دې وروسته تر لسمه هجري پېړۍ پورې نوموړې تيږه د هند د افغاني پاچاهانو په لاس کې وه، وروسته چې «بابر» هندوستان ونيو، دا تيږه يې د افغان لودي پاچاهانو له خوندېنو څخه تر لاسه کړه. بابر هم خپل زوی «همايون» ته وبښله. بابري کورنۍ دا تيږه تر دوولسمه هجري پېړۍ پورې وساتله خو د نادرشاه د يرغل له امله يې له لاسه ورته. د نادر تر مړينې وروسته کوه نور د احمدشاه لاس ته ورغی، احمدشاه ته دومره پر زړه پورې نه و او په خوندينه کې وساتل شو، خو د تيمورشاه ته ډېر خوښېده او پر بېې مټ يې تاړه. زمانشاه چې کوه نور خپل ځای ناستې ته وسپاره دروند والی يې ۸/۳ / ۷۹۳ قيراطه و. شاه شجاع د يوه اروپايي په لاس کوه نور وتووه او ان چې د افغانستان پلاز و جوغه يې هم پرېښووه او په پنجاب کې استوګن و، دا ارزښتمنه تيږه ورسره وه. دا د افغانستان له شتمنيو سره د شاه شجاع يوه ناپامي وه. په هر ډول، د پنجاب واکمن رنجيت سنګ د ۱۲۲۸ کال د جمادي الثاني په پيل کې له شاه شجاع نه کوه نور په سپکاوي واخيست، خو د هغه کورنۍ ته هم پاتې نه شو او د هند د نايب الحکومه «لارډ دالهوزي» له خوا پر ۱۲۶۳ کال په لندن کې ملکې «ويکتوريا» ته ډالۍ شو. کوه نور په لندن کې تر بيا تونې وروسته ۱/۱۶ قيراطه پاتې او تر اوسه د بريتانيا د سلطنتي کورنۍ په ګاڼو کې شمېرل کېږي.

کورنۍ د احمدشاه تر خوځېدو وروسته له ناوړه بر خلیک سره مخامخ شوې.

احمدشاه له هراته د تېرېدو په ترڅ کې هیڅ داسې ونه ښوده چې له پارسي واکمنو سره کار لري او د ۱۱۶۰ کال په رجب کې له ګرد و افغاني ځواکونو سره یو ځای کندهار ته راغی، د لارې په اوږدو کې د پخوا په څېر لوی مشرې د نورمحمد خان غلزي وه او ښار ته له راتګ سره سم یې نورو افغاني مشرانو ته د افغانستان له پاره د پاچاه ټاکلو وړاندیځ وکړ. دا ټکي چې ملي غوښتنه وه ژر ومنل شوه او سمدلاسه افغاني مشران راوبلل شول او ارزښتمنه جرګه جوړه شوه. احمدشاه هڅه کړه چې تر پاچاه ټاکنه پورې، افغان پوځي ځواک چې نېژدې شپاړس زره تنه وو، سره بېل نه شي.

څه موده وروسته د «شیرسرخ» په زیارت کې افغاني جرګه جوړه او پر اړوند سکالو خبرې پیل شوې. د شیر سرخ زیارت چې د نادر آباد پوځي چاونۍ په منځ کې د ښار پر شمالي دېوال پورې نښتی د یوه ناپېژندل شوي روحاني سړي ګور دی. خو نه پوهېږو چې هاغه مهال یې څه ډول بڼه او ودانۍ لرله، ځکه چې اوسنۍ ودانۍ یې (پېنځم انځور) یوه اته اړخیزه ګومبزه ده چې د احمدشاه د لمسي (دشاه محمود ماندینه) له خوا د احمدشاه تر مړینې (۳۵) کاله وروسته، په افغاني ډول او ډېره ساده ګۍ له پخو خښتو نه جوړه شوې ده. [1] کېدی شي چې دا ودانۍ تر څو کلو وروسته د نادر آباد د چاونۍ یوازینۍ نښه وګڼل شي، ځکه چې چاونۍ د اوږښت و لمړوړانګو له امله پر دغه لنده ځمکه د ویجاړېدو په درشل کې ده خو زیارت به د روحانیت د نامه تر سیوري لاندې ډېر؛ کلونه روغ پاتې وي.

د شیرسرخ جرګو ډېرې ورځې ونیوې او اته جرګې ترډېرو خبرو وروسته بې پایلې شوې، ځکه چې په هغو کې د نورو جرګو په توپیر د خوښو ډېرښت په پام کې نه و او پر یوه ټکي د ټولو پرېکړې ته اړتیا وه، ټکي ارزښتمن او اندونه بېلابېل وو ځکه نو غوڅه پرېکړه ستونزمنه وه. د جرګې لویو غړیو، لکه: «د نادر شاه د پدره ګه والو افغاني ځواکونو کوماندان د پوپلزیو مشر نورمحمد خان غلزي (میرافغان) د اسحق زیو مشر موسی خان، د نورزیو مشر نصرالله خان، حاجي جمال خان بارکزي او نورو د تبرنی سیالۍ او بېوالي له کبله د یوه بل پاچاهي منلای نه شوه، لکه نورمحمد خان غلزي چې د جرګې مشر ګڼل کېدملو ځان یې د شخصي او کورنی سابقې له مخې د پاچاهۍ وړ ګاڼه، سره له دې چې د ځان ټاکنې له پاره یې ډېرې هڅې وکړې خو پاتې راغی، غونډې د هغه

(۱) پر ډبرلیک یې دغه پارسي لیکنه لوستل کېږي: «بعون و عنایت الله تعالی وقف فی سبیل الله بر مزار فیض آثار شیر سرخ. از طرف نواب مستطاب معلی القاب (والده ء عصمت نشان) شهزاده کامران.. گردیده است.. چهارشنبه ۱٤ ذی القعدة ۱۲۲۱»

تریخ مزاج دد پاچاهی ور ونه باله. په رښتیا هم ښه یې ویلي هغه څوک چې پر خپلو اعصابو حکومت نه شي کړای، پر خلکو به حکومت و نه کړای شي.

هغه چا چې د جرگې په ټولو غونډو کې د ځان په اړه هیڅ ونه ویل، یو او هغه هم «احمدشاه» و خو په نهمه ناسته کې د غونډې یوه غړي د لومړي ځل له پاره احمدشاه سدوزی د ښو اخلاقو او ځرگندي کار پوهې له امله د پاچاهی ور وگانه او د هغه ټاکنې په اړه یې وراندیځ وکړ، دغه سړی د استاد لایخوارزوي صابرشاه کابلی[1] وچې د تصوف د لاروي په توگه د ټولو کندهار یو مشرانو د درناوي ور و.

دده ناپېیلي وړاندیځ نه یوازې دا چې د شخرې او لانجې لامل نه شو، لا یې د غونډې لوی مشران دې ته ځیر کړل چې احمدشاه د کوچنی کورنی دی او د لویانو پر وراندې به خپلسري واکمن نه شي، په دې توگه تر لږ خبرو وروسته د غونډې برخوالو د احمدشاه ټاکنه ومنله او په پای کې احمدشاه سدوزی د افغانستان پاچاه او د شیرسرخ ملي جرگه چې ارزښتمن تاریخي کار یې بشپړ کړی و، پای شوه. احمدشاه له جرگې نه د افغانستان د پاچاه په توگه راووت؛ د خلکو لوړینو او پېرزوینو ته یې ځواب وایه او د سرو زرو جوغې ته ورته غنم ورته یې پر سر ولاړ و. «کتلی شئ: شپېږم انځور» دغه طبیعي او تاریخي جوغه، د ټاکنې په هماغه غونډه کې د احمدشاه د لومړني ټاکونکي «صابرشاه» له خوا د نېکمرغی په هیله د هغه د خولی پر ځنډه تومبل شوې وه، دا تاریخي پېښه د ۱۱۶۰ هـ پر شوال چې د ۱۷۴۷ له اکتوبر سره سمون لري، منځته راغله، مانا دا چې تاریخ لیکونکیو د نادرشاه وژل او د احمدشاه پلازناستی د ۱۷۴۷ زېږدي کال په جون او اکتوبر کې ښولي او موږ پوهېږو چې د ۱۱۶۰ کال پیل (د محرم لومړی) د ۱۷۷۴ د جنوري له ۱۳ سره سمون لري، نو جون او اکتوبر میاشتې د نوموړي کال له جمادی الاخر (د نادرشاه د وژل کېدو نېټه) او شوال (د احمدشاه پلازناستی) سره سمېږي.

اوس به دغه (۲۵) کلن زلمی چې د پېښو لړی د یوه لوړو ځوړ لیدلي هېواد د چارو په سر کې وټاکه؛ ووینو چې د افغانستان د هېواد و ملت له پاره یې څه ډول خدمتونه سرته رسولي دي، خو دده د کړو د ارزښت پېژندنې له پاره غوره گڼم چې تر احمدشاه د مخه د افغانستان پر اوتا لنډه رڼا واچول شي، چې د پرتلې تله د تاریخي پېښو د یوې سترې اړتیا په توگه له لاسه و نه وځي.

---

(۱) منشي غلام حسین، سیر المتاخرین، د لکنهو چاپ.

# اوولسم څپرکی

## تر احمدشاه وړاندې افغانستان

افغانستان په سهیلي اسیا کې یو لوی هېواد دی. د بتلیموس له «آریاکا» یا «جیحون» څخه د عمان تر سمندره او د لرغوني «اپارتیا» له ولایتونو او «سکاستین» یا خوراسان او سیستانه د «ایندوس» تر سیند پورې غځېدلی چې د گاونډیو آریایي ملتونو په پرتله تاریخي ارزښت او لرغونوالی لري. (۱)

افغانستان د هندو اروپا څانگو د خوځښتونو منځی دی چې د سیحون و جیحون له غاړو تر اتلانتیک سمندر پورې خوځېدلي او د گاونډیو آریایي ملتونو پر ژبو، دین، سیاست او صنعت یې اغېز ښیندلی او تر اسلام څو پېړۍ د مخه یې په ماوراءالنهر، پارس او د هندوستان په سیمو کې لوی لاس لاره.

افغانستان یا لرغوني باختریان و اسلامي خوراسان د هند و ایران د ژبو، دین او دودونو سرچینه ده. د مسیح تر زوکړې څو پېړۍ د مخه یې پارس ته د زرتشتي دین زېری ورکړی او تر پېنځمې زېږدې پېړۍ پورې یې د یوناني او تخاري دولتونو په پېر کې د ماوراءالنهر، کاشغر، ختن او هندوستان پر هېوادونو واکمني کړې.

---

(۱) کتلی شئ: (لس تاریخي لیکنې) د «افغانستان و نگاهی به تاریخ آن» تر سر لیک لاندې د کمترین لیکنه د کابل مجلې د لومړي کال په گڼو کې، د کابل چاپ. ۱۳۱۰-۱۳۱۱ لمریز کال. همدا راز «تاریخچه مختصر افغانستان، زما لیکنه، په لومړنی کابل کالنی کې، ۱۳۱۱ لمریز.

همدا راز د اسلام په پېر کې د صفاري سامان، غزنوي سامانیاو غوري پاچاهانو له مهاله تر تیموریانو او ابدالیانو پورې پر ماوراء النهر، پارس و هندوستان په بېلا بېلو، مهالونو او ځایونو کې واکمن و.

افغانستان باختري او اسلامي مدنیتونه لرل او د اویستا له مهاله یې تر یوه پېره پورې د ختیزو اریایانو په تاریخ او اسطورو کې ستره ونډه ده.

د یامار، رستم، زرتشت، اویستا، ښکلي بخدي، ویشتاسب، کنښکا، برمک، سامان، صفار، محمود و شهاب الدین نومونه د ابونصر، ابن سینا، ابوریحان، مولوي جلال الدین بلخي او په لسګونو داسې نورو له نومونو سره، همدا راز له افغانستان« په ځانګړې توګه له ختیزو ولایتونو، شمال او کابلستان ( تر اسلام د مخه) » څخه لاس ته راغلي ښېې، لکه: ودانۍ، بوتان، انځورونه، پیسې او داسې نور، د اسلامي پېر د ودانیو ښېې او ګڼ شمېر صنایع، لکه: زرګندلي انځورونه، میناتورې، خاتم کارې،(۱) ترکاڼي، انځوریزې وسلې جوړونې او داسې نور د افغانستان د تېرو ویاړلیو ورځو د یادګار په توګه پاتې دي.

سربېره پر دې، افغانستان ستري تاریخي ناخوالي لیدلي، مانا دا چې لا د زرتشت و باختري دولت یوه پېرۍ تېره شوې نه وه چې په شپږمه مخزېږدي پېړۍ کې هخامنشیانو پر افغانستان راودانګل، سره له هغې چې نومیالي« کوروش » د افغانستان د لویدیزو ساتونکیو (د سیستان سکایان) پر وړاندې خپله کوېرۍ بایلله خو په هېواد کې د هغوی پوځي او سیاسي واکمنې وغځېده. دا مهال افغانستان وځپېد او په باج منېه اړ شو خو د پارس غوندې د هخامنشي مدنیت« چې لا اوم و » تر اغېز لاندې رانه غی.

هخامنشیان د ماکیدوني سکندر « څلورمه مخزېږدي پېړۍ » له یرغله وتښتېدل او د افغانستان ور یې د هغوی پر مخ پرانیستي پرېښوو.

یونانیانو په د بره مرینه، ژوبله هېواد ونیو، خو ژر په افغانوا له کې ورنګېدل او د باختري صنایعو سرچینه او د یوه بړویال دولت بنسټ ایښوونکي شول.

پر شپږمه مسیحي پېړۍ د افغانستان دویمه ویجاړې پیل شوه، ساسانیانو له

---

(۱) هغه لرګین لوښي چې د پیل داړو، هډوکیو، وسپنې، یا لرګي په ټوټو ښکلي شوي وي. (ژباړن).

تورکستاني تورکانو سره د افغانستان رنګولو او وېشلو ترون وتاړه؛ بدخشان او کتغن يې هغوي ته پرېښوو او مزار، مرو او هرات يې خپله واخيستل. کېدی شي چې «نوشيروان» به په دغه سياسي تېروتنه کې چې پر دی توکم يې د افغاني آريايانو هېواد ته رانتوېست او مرسته يې ورسره وکړه؛ ګرم نه و، ځکه هاغه مهال افغاني هياتله دولت چې پر پارس يې بريدونه کول؛ لوټه يې او کلکه دښمني يې ورسره کوله، په خپله يو بل دښمن ګڼل کېده.

محمود غزنوي هم چې د بر پوه او سياسي پاچاه و، داسې تېروتی دی؛ په خوراسان ولايت کې يې څو زره تورکمن شپانه پوولو ته پرېښوول. همدا تورکمن وو چې په پای کې يې دده د کول د ولت وپرځاوه او د افغانستان د شمالي ولايتونو پرنيولو سربېره يې پارس هم ونيو. تر هغې چې دوي له افغانستان و پارس سره د ګډېدو په ترڅ کې روږدېدل، نوموړيو مدني هېوادو ته يې د بر تاوان وروړاوه.

پر افغاني تخارستان باندې د تورکانو تر واکمنېدو وروسته، چينيان هم وپارېدل او پر اوومه زېږدي پېړۍ هغه ولايت ته رانتوتل. افغانستان په دغه پېر کې له بهرنيانو نه د بر تاوانونه وليدل او له ساساني تمدنه يې چې تر د بره يې مصنوعي بنه لرله هم دومره ګټه وانه خيسته.

همدا چې اسلام راڅر ګند او عربو نيونې پيل کړې، ساساني يزد ګرد د داريوش غوندې له لويديزې جبهې نه وتښتېد او عربان يې د افغانستان ترمنځ او ماوراء النهر پورې را پرېښوول، خو افغانستان د اسلام په پېر کې نوي ژوندانه ته ورننوت؛ ابومسلم خراساني او بلخي برمکي کورنۍ د عربو سياسي رژيم واړاوه؛ عربي پوهه يې پر مخ بوتله؛ پر دريمه اسلامي پېړۍ د هرات طاهري حکومت خپلواکي غوښتنه پيل کړه او افغاني صفاريانو په هماغه پېړۍ کې دا هيله وغځوله، ان تر دې چې د ټولو مسلمانو اريايانو د خپلواکۍ بنسټ يې کېښوو. له همدغه امله يعقوب سيستاني ته «د افغانستان د اسلامي پېر رستم» ويلی شو.

تر دې وروسته د بلخ له افغاني ساماني پاچاهانو نه نيولې د قطب الدين خوارزم شاه تر پرځېدو او د مغولو تر ځرګندېدو پورې، افغانستان د پرمختګ و تمدن پر ليکه لاړ او خپل بايللی لرغونی سياسي برم و مدنيت يې په نوي بنه راژوندی کړ. همدا مهال وچې

هندوستان تر څو پېړيو پورې د افغانستان دويم سياسي، ادبي او مدني منځۍ شو. [1]

د افغانستان دربيمه توره او ډاروونکي ويجاړتيا د چنګېز (اوومه اسلامي پېړۍ) له تاړاکه پيل اوډ ګوډ تيمور (اتمه اسلامي پېړۍ) له مړينې سره پای ته رسي.

د تيمور لړۍ د خپلې وړتيا له مخې په افغانوالـه کې ورنګېدل او له دې خاورې او اوبو (هېواد) سره يې زړه وتاړه. دوی د جغتايانو پر تو پير په افغانستان کې پلازمېنه جوړه کړه څکه خو تر سلو کلو پورې افغانستان وکړای شول چې دمغولو ويجاړونې ورغاوي، خو له بده مرغه پر لسمه اسلامي پېړۍ د افغانستان څلورمه ويجاړونه پيل او پارسي صفويانو د ماورا ءالنهر له اوزبکو سره افغانستان لوټلو ته لاسونه رااوږده کړل، دوی د افغانستان وېشلو له پاره د نوشيروان او توركي خاقان هماغه تګلار پلې کړه خو توپير يې دا و چې هاغه مهال يې يوځای او دا مهال يې په سيالی سره دغه کار پرمخ بوت، همدا وه چې يوځل بيا د افغانستان رنګېدل و وېشل پيل شول.

دا مهال بابر ګورګاني ته د هند هيله ودرېده او د هند د افغاني دولت تر مات،لو وروسته يې د هېواد ختيزې سيمې له ځان سره کړې، لکه څه رنګه چې اوزبکو او صفويانو هم شمالي او لوېديزې سيمې ښکېللې وې.

افغانان ددې څلورمې ويجاړتيا په بهير کې چې له لسمې تر دوولسمې پېړۍ پورې اوږده شوه، وزګار کېنه ناستل اود پرديو د شرلو او خپلواکۍ ګټلو له پاره يې ډېرې هڅې وکړې. سره له دې چې په ختيزه جبهه کې د هند د بابري دولت پر وړاندې د ملت بلهاريو او جهاد برې ونه موند، خو په لوېديز کې د پارسي صفويانو پر وړاندې ملي مشران بريالي شول. ددغه تاريخي داستان اتل هماغه نوميالی افغان مړه« ميرويس نيکه » دی چې زوی يې« ميرمحمود » پارس ونيو، خولا د ميروس نيکه« (کتلې شئ: اووم انځور، د ميرويس زيارت) او شاه محمود له مړينې څوکاله تېر شوي نه وو او افغانستان لا په دننه کې د سياسي واکمنۍ پريوالي بريالی شوی نه و، چې د تاريخ پاڼې واوښتې او نادرشاه خراساني راڅرګند شو. د نادرشاه تر مړينې وروسته يې په نهول شويو هېوادو کې پاڅونونه او تېرمشري پيل شوه. پارسيانو تر لسو کلو پورې هېوادنی

---

(۱) کتلی شئ: د کمترين نه تاريخي ليکنې، د «افغان در هندوستان » تر سرليک لاندې، د کابل مجلې د دويم کال په ګڼو کې، ۱۲-۱۳۱۱ لمريز کال.

امنیت او د سیاسي واکمنۍ یووالی ټینګ نه کړی شو، دا ګواښ افغانستان ته ډېر مخامخ و، ځکه چې د افغانستان ملت د ونډیزو سیالیو له امله شنلی؛ د پردیود واکمنۍ له امله ناهیلی او کرکجن او د شتمنۍ له پلوه بې وزلی و، ملي مشرانو، خانانو او روحانیونو هم د ملت ډېره برخه چې پر کرهنه څاروي روزنه او څه هم په ښارونو کې په سوداګرۍ او لاسي کارونو بوخت وو، د خپلو ورو تو کیزو ګټو له پاره کارول. د هېواد په شمالي سیمو کې د بخارا د جنیدي واکمنو پټې سیاسي لومې غځېدلې وې؛ په لویدیزو برخو کې نادري واکمنو ځانګړې خپلواکي غوښته او په ختیزو څنډو کې هندي واکمنو یو ځل بیا له هندوستان سره د یو ځای کېدو بنسټ کېښوو.

په دغسې او تاکې افغانستان یوه ځواکمن مټ، ټینګ هوډ او رانه‌اند ته اړ و چې دا ناخوالې لرې، ملي او سیاسي یووالی راژوندی او افغانستان یو ځل بیا د ختیځ هېوادونو پر لیکه ودروي چې په دې توګه د میرویس نیکه ناپشپړه تګلار بشپړه شي. دا لسې سري احمدشاه و چې په دې ارزښتناکه شېبه کې یې ستر خدمت وکړ او خپل ځانګړی او تولنیز ارزښت یې وځلاوه.

# اتلسم څپرکی

## د احمدشاه اداري وړتیا

احمدشاه چې د افغانستان د سلطنت پر پلاز کېناست، یو جګړه لیدلی او ازمېیلی سیاسي سړی و، هغه په افغاني اروا او تاریخ پوه او د کورنیو شخړو له امله د ملت د ټولنیز بنسټ کمزورتیا ته ځیرو.

احمدشاه پوهېده چې که د یوه هوښیار مشر تر لارښوونه لاندې ملت سره یو شي، بیا به یې نړۍ ته تاریخي برم وځلېږي، ځکه یې له یوې خوا د کورنیو شخړو د هوارې «په ځانګړي توګه د ابدالیو او غلزیو کورنۍ لانجې ته چې میراثي بڼه یې موندلې وه » پام شو او له بلې خوا یې پر حکومت باندې د ملت د واک منډو هڅې پیل کړې. احمدشاه زیار وکېښ چې د افغانستان وګړي وپوهوي چې دوی سره ورونه؛ په ګډه او تاوان او د حکومت په چارو کې سره ګډ دي، له همدغه امله یې په پلازمېنه کې د افغاني قامونو د مشرانو یوه تلپاتې جرګه جوړه او په ټولو ارزښتمنو هېوادنیو چارو کې یې له هغوی سره سلا او پوښتنه کوله.

احمدشاه به چې یو ستر کار پیلاوه، نو د مخه به یې دلویو افغاني قامونو په اند ځان پوهاوه او هڅه یې کوله چې هغوی په خپله پرېکړه کې راګډ کړي، په دې توګه یې د افغاني مشرانو د جرګې ګډه پرېکړه تر لاسه کوله ، نو هغه کارونه چې ده وکړل د ملت خوښ وو او خنډ په کې نه پېښېده. همدا راز د ملت مشران د احمدشاه ملکي کارکوونکي او پوځي چارواکي وو چې په جګړه یزو خوځښتونو کې یې د خپلو قامونو له

نیم پوځي سرتېري او سره یوځای دده ملاتړ کاوه. دا هماغه دود دی چې «مېلسن» د مبالغې په بڼه «فیوډالي جوړښت = تیرواکي» ګڼلی دی.

احمدشاه د افغانستان له ملت سره په داسې شېبه کې مخامخ شو چې د ګروهې او دین پریووالي سربېره د ګټو له پلوه سربېل و خو د فطرت او ملي ځانګړتیا وو له پلوه دخپواکی، ویاړ او د اقتصادي کمزورتیا له امله د شتمنۍ غوښتونکی و او لا یې پر زړه د هوتکي پېروښیوونکی باد لګېده، ځکه نو یوه ښه لارښود ته سترګې پر لار ښکارېده.

هر قام و ملت د هغه څه د لاس ته راوړلو له پاره چې نه یې لري چمتو وي او ور شېبې څاري. احمدشاه هم د لارښوونې دغه دنده ومنله او هماغه ور شېبې یې افغاني ټولنې ته رامنځته کړې. په رېښتیا چې دا چارې په ښه توګه تر سره کړای شوې.

احمدشاه له قام سره د لومړیو لیدنو په ترڅ کې د یوه ازمېیلي سیاست پوه غوندې چې وګړني ځان غوښتني دخپلې تګلارې له پاره کاروي، د افغانانو توره، ویاړ غوښتنه، خپلواکپاله، واکمني او ګټه خوښونه راوپاروله او د اسلامي هېواد ساتنه، د مذهب له دښمنانو سره جګړه او له بډایو هېوادو څخه د شتمنیو د اخیستلو ټکي یې وړاندې کړل، په دې توګه یې د ټول ملت نغښتې او ویده مانیز ځواک راویښ او پر یوه لوري وخوځاوه.(۱)

---

(۱) هاغه مهال افغاني ټولنه له دغو پوړونو رغېدلې وه: د آمرانو او مامورینو پوړ، د خانانو او سیمه یزو مشرانو پوړ، د روحانیونو پوړ (ملایان، شیخان، سادات) د سوداګرو پوړ، د کروندګرو پوړ، د صنعتګرو او کسبګرو پوړ، د شپنو او کوچیانو پوړ او د پریوتیو پوړ (چپراسیان، بېوزلي او نور). سره له دې چې په افغانستان کې دا پوړونه له پخوا راهیسې وو او د خپلو دندو او کارونو د بدلولو واک یې لاره خو بیا هم ډېر لږ لیدل شوي چې یو سړی دې دخپل پلار پوړ پرېږدي او بل ته دې واوړي، په دوی کې تر شاهي کورنۍ او آمرانو وروسته لوړ رتبه ملکي او پوځي چارواکي لومړني پوړ و او روحانیون و سیمه یز لوی خانان پر دویمه کرښه سم ورسره تلل. سوداګر او محکه وال دریم پوړ او نور پوړونه تر هغوی ټیټ وو. خو روحانیونو په نورو پوړونو کې پله ورتیا هم لرله او هغه دا چې تر ډېره شتمن او له دولتي مالیو او پوځي بېګارونه ګوښه وو. همدا راز یې هر کال له دولت نه د «مستمري» په نامه تنخا او له وګړیو نه «نذر» هم اخیستسه؛ رسمي دربارونو ته بلل کېدل او د کرکېلې، ویالې کېندلو او داسې نورو پر مهال د وګړیو له خوا ورېا مرسته هم ورسره کېده او دولتي چارواکیو او خانانو یې سپارښتنې په خورا درناوي منلې خو خداي ښه پوهېږي چې د وګړیو دا مرستې او وړیا کارونه په خوښه وو که په ناخوښه او یا هم دا سپارښتنې حق وې که ناحق؟

کروندګر او ټیټ پوړونه په پرله پسې ډول د واکمنو، روحانیونو او خانانو تر بېګار لاندې ګڼل کېدل. بوازې شپانه کوچیان چې ټاکلی کور یې نه لاره د بېګار له جغه لرې وو، ځکه یې کلیوال او ښاري ژوند خوښ نه کړچې پایڅور یې تر ننه هم لیدل کېږي.

د لویو هیلو بشپړاوی تولنیـزه پارونه غواړي. د پیاوړي ملي ځواک جوړېدو او د پرله پسې جنګونو پیل یوځل بیا دافغانستان ملت پټ ځواک را وینښ او په پای کې یې پر پردیو د افغان توکم د برم و لوړتیا ګروهه غښتلې کړه.

احمدشاه تر جګړو او بریو وروسته په نیول شویو سیمو کې د افغان ملتوالي د کړی خپرولو ته ملا وتړله چې ورځ پر ورځ لویه هم شوه. احمدشاه نیاو او سلاد خپلو کارونو بنسټ باله؛ له دې لارې یې تولنیز باور و ملاتړ تر لاسه کړ او په مینه او داد یې دخپلو کارمنو او چارواکیو زړونه خپل کړل. سره له دې، احمدشاه ددې تګلارې د سرغړوونکیو پر وړاندې سخت سری او کلکړی سړی هم وچې بې لارې یې په زور لارې ته راوستل.

تر دغه ځایه مو ولیدل چې احمدشاه په ښه ډول وکړای شول چې له ملي او تا او هغې وړتیا نه چې د فطري غوښتنو او پخوانیو پېښو له امله منځته راغلې وه، د هېوادنی لوړتیا له پاره ګټه واخلي. همدغه د پېژندنې اوکارونې متره، ستري برياوې، د کورنيو چارو سمون او دده ځانګړي اوچت اخلاق په ګډه ددې لامل شول چې واړه افغاني پرګنې پر ده بشپړ داډ ووېسا ولري، بده نه ده چې دلته پر احمدشاه باندې د ملت د نرو او ښځو باور لرلو د بېلګې په توګه یو کوچنی داستان وړاندې کړو، کندهاریان وايي:

یوځل د هندوستان له یوځې یانه ځخه داحمدشاه تر راستنېدو وروسته د اوسني کندهار ښار شمال ختیز لوري ته پېنځه میله لرې «دامان» نومی ځای دده د اوردو اډه شوه. د شپې له خوا یوه سرتیري اډه خوشې کړه او د خپل کوماندان له خبرولو پرته د خپل کلي خوا ته چې د احمدشاه له چاونۍ نه دومره لرې نه و، و خوځېد او د خپلې مېرمنې «اینو» لیدو ته ورغي، خو همدا چې مېرمن یې وپوهېده چې مېړه یې په تېښته د احمدشاه رکاب پرې ایښی، لوړه یې وکړه چې کاله ته یې پرې نه ږدي او ورته ویې ویل شرم دي چې احمدشاه بابا لاخپل انګړ ته ننوتی نه وي، سرتېری یې خپل کاله ته راشي. سرتېری ستنېدو ته اړاو اډې ته له ورننوتو سره سم د ځارن له خوا ونیول شو، سهار دا پېښه د ساتونکیو افسر ته ورسیده، سرتېری یې خوشې کړ خو کیسه تکی پرتکي د احمدشا تر دربار ه واورول شوه، احمدشاه ددغې افغاني مېرمنې په مېړانه خوراخوښ او دداسې روزنې د هڅونې په پار یې هغه کاریز چې د همدغه کلي تر څنګ بهېده ، دې ته ور وبانښه. دا کاریز تر ننه شته او «اینو کاریز» نومېږي.

دغه سیمه یزه کیسه چې بهلګې یې خورا ډېرې دي پر احمدشاه باندې د پرګنو د لورېینې ښه ثرګندويي کوي:

لکه و مو چې ویل احمدشاه د ملي او سیاسي یووالي، د افغاني ملتوالۍ د کړی پراخېدو او کورنیو شخړو د لرې کولو له پاره یې ساري هڅې وکړې او د یوه پیاوړي اوردو او لښکر غځونو له لارې یې د تاریخي لوړتیا غوښتنې هیلې د ملت په چوکاټ کې سمبال کړې. همدا راز یې په افغانستان کې ځواکمن دولت جوړ کړ او رښتینې چارواکي او تکړه افسران یې وروزل. په دا ګه ویلای شو چې احمدشاه د تکړه کارپوهانو په ټاکنه کې ښه وړتیا لرله او د خپل اخلاقي ځواک او غوځو پرېکړو د اغېز له لارې د اوردو د ټینګښت، اطاعت وبلهارۍ لامل شو.

احمدشاه په دولتي چارو کې د چارواکیو وړتیا او پر ځغوی باور ښنستیز توکي ګڼل او تر ډېره چارواکي او کارکونکي د ژوندانه تر پایه پر رسمي چارو پاتې کېدل. سربېره پر دې احمدشاه ټولې دولتي چارې د یوې سترې اوپټې کړی په مرسته څارلې او پر سزا او ستاینه یې لاس نه نیوه، همدا هڅې وې چې د ه له ستلجه تر خراسان وسیستانه او له آمو تر عمانه د افغانستان سیاسي او ملي یووالي ښېیر او میلیونونه افغان وګړي یې پر یوه ملي غولي راغونډ کړای شول.

د افغانستان ملت هیڅکله هم د احمدشاه د ښېګڼو پر وړاندې خنډ نه شو؛ د ده له غوښتنې سره سم پر مخ لاړ او زرګونو وګړیو یې په نغوته پر ډګرونو خپلې وینې تویې کړې، دغه پېرزوینې او لورېینې وې چې پر ته له کومې خپللاسې جوړونې او رسمي تشریفاتو ده ته (د افغان بابا) وویل شول.

یوه لوی افغان دغه لوی افغان داسې ستایلی دی:

«... و کان هذا السلطان العظیم الشان (ای احمدشاه) من قبیلة السدوزائی وهی القبیلة التی... من اجل ذالک تمکنت محبته من قلوب رعایاه عموماً مع اختلافهم فی الاجناس و المشارب ومن قلوب الافغانیین خصوصاً حتی انهم کانوا یعتقدون من المقربین الی الله و یعدونه اباً للعموم الافغانیین و من ثم لقبوه ببابا و هو الی الان یعرف عندهم بهذا اللقب اذ یدعونه احمدشاه بابا واستقر عرش ملکه وسلطنته علی دعائم الثبات و التمکن ولکن لما کانت العلة الحقیقة لثبات الملک و السلطنة هی حکمة و تدبیره الخ» (۱)

---

(۱) کتلی شئ، د سید جمال الدین افغان «تتمة البیان»، ۶۸-۶۹ مخونه.

احمدشاه د بهرني سياست په اړه ځير سړی و، له همدغه امله يې د جنګيالي او چمتو ملت او د توريالي او پياوړي اوردو پر لرلو سربېره هم پر ماورالنهر يرغل و نه کړ او د جيحون پنځيز برید ته يې په درناوي وکتل. همدا راز يې پارس ته لاس و نه غځاوه او يوازې د خراسان و سيستان د ځمکو په بيا نيولو چې د افغانستان لرغوني او پنځيزې برخې وې؛ وسپېد.

که احمدشاه له ستلجه اخوا پورېوتی هم دی، نو موخه يې د سند د سيمې ساتل وه، نه دا چې خپل غچ تر سره کړي يا هېوادونه ونيسي.

لنډه دا چې احمدشاه له خپلې سياسي او پوځي پوهې او له ټول هغه برم و پرتم سره چې وې ګاته، که د هېواد د علمي، صنعتي او اقتصادي پرمختګ مهال لاس ته ورغلای وای چې ګانده يې په ډاډمنه توګه وځاري او ټينګه يې کړي، نو د نړيوال تاريخ يو نوميالی پاچاه به ګڼل شوی وای، خو موږ پوهېږو چې احمدشاه د خدای ورکړې ورتيا او پوهې تر سيوري لاندې او د خپلو پرله پسې هڅو او ټينګ هوډ له امله په افغانستان کې سترې سياسي سمونې او مانيز بدلونونه تر سره او خپله دنده يې بشپړه کړه، تر دې چې هغه د اتلسمې پېړۍ افغانستان د اخلاقي ځواک په وده کې خورا اغېزناک ګڼلای شو، ځکه چې سياسي بدلونونه د مذهبي او ټولنوتيزو هغو په څېر د ټولنې په اروا کې نوې ودې ته اړتيا لري، نو په دې توګه احمدشاه يو بريالی پاچاه او تکړه سياست پوه و، نه يو انديال فيلسوف.

# دريمه برخه

## داحمدشاه هېوادني چارې

هغه بنسټونه چې احمدشاه د افغانستان په اداري، ملکي او پوځي چارو کې پر ببلا، ببلو مهالو او له جګړه يزو لښکر ګڼځونو نه د وزګارتيا په ترځ کې ايښي، پر له پسې والي نه لري او ورو، ورو يې وده کړې خو د هغې اودنې له پلوه چې په پام کې ده، دلته يې تر ټولو غوره يو پر بل پسې يادوو.

# نولسم څپرکی

## د احمدشاه ملکي جوړښتونه

په پلازمېنه کې:

داحمدشاه د اداري جوړښتونو (ملکي، پوځي) د پېژندلو له پاره دوې سرچينې لرو: لومړۍ د هغه د دولت د کارکوونکيو نومونه او د هغوی ځينې کړنې چې په ځغلنده توګه د تاريخ پرپاڼو ليدل کېږي.

دويم په دې اړه د احمدشاه د پايڅوړ د مهال ټولنيزې تاريخي نغوتې دي چې ياد ده کول و يا محمد زي؛ ځکه چې دوې هماغه د احمدشاه مهال جوړښتونه په لړ و د بر توپير

ساتلي دي. په دې توګه يې د احمدشاه له پېر سره پرتله، د دې خپرونې په ترڅ کې مرسته کوي.

په هر ډول مخکې تر هر څه بنايي وپوهېږو چې د احمدشاه په بنسټيزو او اداري جوړښتونو کې هماغه هېښنده ځانګړ تياوي شته چې د ډېرو اسلامي هېوادونو په څو پېړيزو اداري جوړښتونو کې ليدل کېږي چې هغه هم د تاريخي او ملي دودونو، د عربو د اداري ډول او د مغولو او توركو د نښو او ګړنو يو ډول ګډون دی. همدا راز د احمدشاه د مامورينو رسمي نومونه دملي، عربي او تورکي ګړنو له اوډنې څخه راوتلي وو چې ځينې يې تر چنګېز ډېر پخوا د ختيځ په اسلامي هېوادو کې دود وو. دا ټکی په ګڼو اسلامي تاريخونو کې په څرګنده توګه ليدل کېږي. په دې توګه په افغانستان کې د احمدشاه ځينې دولتي اداري بو تر بله اړيکي نه لري او يو شمېر سره ورته هم نه دي. ګڼ شمېر اداري خپلواکې اوسيده پاچاه ته ځواب ويونکې وې. يو شمېر کوچنيو ادارو تر ډېره د ماليې پر وزارت اړه لرله. د ولايتونو ځينو ادارو هم له اړوند وزارتونو سره اړيکي نه لرل او مخامخ يې د سيمه يزو واکمنو تر لارښو نو لاندې کار کاوه. سره له دې چې دفاع وزارت له ملکي ادارو نه توپير لاره خو په ډېرو چارو لکه: لګښتونو، تنخاګانو او لوښيو کې يې له ماليې وزارت او ملکي څانګو سره ګډې خواوې وې.

د احمدشاه پرمهال څه بنديغ نه و چې يو سړی پر يوه مهال څو ندې ولري، کټ مټ د پنځيز آرسرچپه چې يو شي پر يوه مهال دوه ځايونه نيولی نه شي، د احمدشاه چارواکيو کړای شول چې د مانا له مخې دا ناشونی کار کېدونکی زيات کړي. په دې توګه د پورتنيو کتنو او ځانګړنو له په پام کې نيولو سره سم دداغو اداري جوړښتونو پر څېرنه پيل کوو چې له نيم څرګندو تاريخونو څخه راوېستل شوي؛ د محمدزيو له اداري آرونو سره پرتله شوي او زموږ په ننني اداري نومونو ژباړل شوي دي.

## وزارت:

د احمدشاه پرمهال د کورنيو چارو وزارت و عظمي صدارت يوه سړي ته چې «وزير» نومېده سپارل شوي وو، دا سړی تر پاچاه وروسته دهېواد لومړنی څېره وه چې کله کله به يې د «وکالت» په نامه د نايب السلطنه چارې هم سمبالولې. په کړارو و ورځو کې د صدراعظم په توګه د وزير دندې د دولتي ادارو پرڅارنه او د پاچاه

پرسلاکاری سربېره د هېواد په چارو کې دا وي:

د واکمنو په مرسته د ټولنیز امنیت ساتنه، د سیمه یزو ساتونکیو په مرسته د لارو ساتنه چې د خدمت کالنی تنخایې دخپلو ځمکو هماغه مالیه وه چې دوی ته ورشمېرل کېده خو که په اړوند لارو کې به یې څه تاوان پېښېده نو دوی یې په ورکړه اړ وو، یو مهال د کندهار و غزنې دلارې غلزیو ددغه خدمت په بدل کې د ځمکې د مالیې کالنی څلوېښت زره روپۍ مجرایې لرله.[1]، د واکمنو او نورو ملکي چارواکیو ټاکنه او ګوښه کول (ټاکنه او ګوښه کول د نایب الحکومه ګانو او لویو چارواکیو له ورانديځ سره سم د همدغه وزیر له خوا د پاچا له په فرمان سرته رسېدل)، د پوستې (داګ) چارې (په کرارو شېبو کې د سیمه یزو لارویو په لاس، په بېړنیو ورځو کې د سپرو په مرسته)، د مالیو راغونډول (د مالیې وزارت او مالي څانګو له ورانديځ سره سم د پاتیشونیو د لیک له مخې) او داسې نور.

د احمدشاه مهال وزیر «بګي خان بامیزی» و چې د «اشرف الوزرا» په رسمي نامه یادېده او په لیکنو کې «وزیراعظم» ورته ویل کېده.[2] د احمدشاه د پایڅور په پېر کې وزیر ته «امیرکبیر، مختار مشیر» هم ویل شوي دي.[3] د «تیمورشاه» پر مهال «شیخ عبداللطیف» ته د وزارت چارې سپارل شوې وې او ابن محمد امین هم څرګندوي چې نوموړی وزیر و.[4]

خو «سلطان محمد» او د هغه په پېښو «فیض محمد» «شیخ» یوازې د وکالت او دیوانی مالیې د غونډولو څانګې مشر بولي[5] خو دا چې د غه څانګه د وزیر په دندو کې راتله نو بل څوک یې د تیمور شاه د مهال د وزیر په توګه په ګوته کړای شوی نه دی ځکه چې هاغه مهال د وزیر په نامه پرته له یوه سړي بل څوک نه و. همدا راز فیض محمد تېروڅي چې وایي: «وزیر شاه ولي خان د بدخشان تر نیولو وروسته د احمدشاه له خوا «د

---

(۱) سلطاني، ۲٦٤مخ.

(۲) مکتوبات فقیرالله، ۲۷۰ مخ، د فقیرالله علوي شکارپوري د لیکنو کتاب په لاهور کې چاپ شوی، خود چاپ نېټه نه لري.

(۳) سلطاني، ۱۹۲مخ.

(٤) مجمل، ۱۵۳مخ.

(٥) سلطاني ۱۵۲مخ.

اعلی دیوان وزیر » نوم تر لاسه کړ ، ځکه چې د «اعلی دیوان» نوم د مورخینو پر ځرګندونه سربېره د سدوزیو پاچاهانو د فرمانونو له مخې هم «د مالیې وزارت» ته ویل شوي دي[1] او د مالیې وزیرانو د «دیوان بېګي» یا د اعلي دیوان مستوفي نوم لاره. دا په نورو اسلامي هېوادونو یا په تر احمدشاه دمخه افغانستان کې وو چې د مالیې وزارت مشر ته وزیر ویل کېدل او د هېواد سر وزیر (صدراعظم) هم و، لکه د غزنویانو پر مهال چې په افغانستان کې لاندېني څلور ګوني وزارتونه وو او د مالیې وزیر (د دیوان وزیر، کله، کله د وزارت د دیوان خاوند) صدراعظم هم ګڼل کېده: لومړی- د دیوان وزارت (د مالیې وزارت وعظمی صدارت)، دویم- د عرض وزارت (دفاع وزارت) خو دد غه وزارت په سر کې «سپاه سالار» د مارشال و ستر درستیز په توګه ګڼل کېده. درېیم- د رسالت وزارت (شاهي دارالتحریر). څلورم- د وکالت وزارت (د پاچاه د ځانګړیو چارو څارونکی او د دربار وزیر) دغه وزیر تل د پاچاه د سلاکارو غونډو او د وزیرانو د غونډې غړی نه و. د احمدشاه او د هغه د وروستیو پر مهال مطلق وزیر چې د عظمی صدارت دنده یې هم لرله، لکه: د احمدشاه وزیر «شاه ولی خان» د تیمورشاه وزیر «شیخ عبدالطیف خان»، د زمانشاه وزیر «رحمت الله خان»، د شاه محمود وزیر «فتح خان»، د شاه شجاع وزیر «عبدالشکور خان» او «سردار محمد اکبر خان (وزیر فتح جنګ شاه) د مالیې وزیران نه وو او د هغوی وزارتونه د کورنیو چارو وزارت ته ورته وو.[2]

## اعلی دیوان:

یا د مالیې وزارت، دا اداره د احمدشاه پر مهال خورا ارته وه او د سیده او نا سیده مالیو پر چارو سربېره یې (د باج اخیستنې او خرڅ اخیستنې په نامه ګمرکونه) د کرهنې او اوبو، دولتي شتمنیو (د خالصه په نامه)، کروندګرو او سوداګرو ته د مرستو (د تقاوي په نامه)، د دولتي ودانیو، د خوارو د زېرمو، ضرابخانو او د نغدي او جنسي خوندینو چارې هم څارلې. دې ادارې چې د دولت د ګټو تولې سرچینې یې په لاس کې وې، د

---

(۱) کتلی شئ: د شاه زمان و شاه شجاع فرمانونه، ۱۲۱۰-۱۲۲۱ سپوږمیز کلونه، په کابل مجله ۱۳۱۷ لمریز کال (۳) ګڼه، ۷۸ لمبر کې خپاره شوي، له دغو فرمانونو څخه سربېره پر دغه ټکي دا هم ځرګندېږي چې د افغانستان دسیمو او ټبرونو خانان د پاچاه له خوا د «سلطان و سرکرده» په نامه ټاکل کېدل او پېژندل کېدل.
(۲) کتلی شئ: د بیهقی تاریخ، د ابوالفضل لیکنه، د کلکتې چاپ، ۱۸۶۲ زیږدی کال ۳۱۱۱ مخ.

دولت تول لګښتونه (ملکي، پوځي) پر غاړه لرل او د دفاع وزارت له يوې ځانګړې څانګې پرته چې د پوځي سرتېريو تنخايي وېشله، له ټولو دولتي ادارو نه يې شمېر غوښته.

داحمدشاه پر مهال د دغه وزارت وزير ته «ديوان بيګی» ويل کېده او تر احمدشاه وروسته پر «مستوفي» واوښت.

داحمدشاه ديوان بيګي يا د ماليې وزير «عبدالله خان باميزی» نومېده.[1] چې تيمورشاه هغه وواژه[2] دفيض محمد خان په وينا محمد علي رضا خان نومی هم يو مهال د احمدشاه (د داعلی ديوان د استيفا کارکوونکی) و.[3]

## شرعيه محکمه:

داحمدشاه پرمهال عدلي شرعي محکمو پر شرعي قاضيانو پورې اړه لرله او ملکي چارواکي لکه پوليس يې پلي کوونکی ځواک ګڼل کېده. سره له دې چې د ولايتونو قاضيان د پلازمېنې د محکمو تر لاس لاندې نه وو، خو د منځي قاضي د هېواد تر نورو قاضيانو نېژدې او مشر و، همدا لامل و چې وروسته د پلازمېنې قاضي ته «قاضي القضات» وويل شول او د ابداليانو پرمهال د لومړي ځل له پاره ملامحمد سعيد آخوند پرخپل لوي شرعي مُهر د غه مسجع بيت وکيښ:

«محمد سعيد از فضل حق مشهور شد قاضی القضات شه محمود شد»[4]

دا هماغه نوم دی چې په افغانستان کې د غزنويانو پرمهال دود و.[5] داحمدشاه د مهال قاضي «ملافيض الله خان» و چې د تيمورشاه پرمهال «پاچاه مشير» شو.[6]

ښايي يوه شو چې د پاچاه د ټولواکی له امله د هاغه مهال قضايي محکمې د ځان د پاسه له هر ډول زور او لاربنوونې څخه ګوښه او خپلواکې وې، لکه د تيمورشاه د مهال له يوې شرعي قبالې څخه چې ښکاري د هېواد د سترو منځيو لکه په کندهار کې د هاغه مهال قضايي محکمې د يوه قاضي او اتو نايبانو او مفتيانو (همدا راز څو کاتبانو) له

---

(۱) مجمل، ۱۵۵ مخ. (۲) سراج، ۳٦ مخ. (۳) سراج، ۵۵ مخ.
(٤) سراج، ٦۲ مخ. (۵) بيهقي، ۲٤۸ مخ. (٦) سراج، ۷۲ مخ.

خوا اداره کېدي. (۱)

## د ليکلو ځانګه (شاهي دارالتحرير):

د دې ځانګې دنده څرګنده ده چې د شاهي فرمانونو ليکل وو. د احمدشاه پر مهال د انشا ديوان د يوه يا څو مشرانو تر لاس لاندې چې «منشي باشي» نومېدل او د «سرليکونکي» مانا لري سمبالېده چې تر ماليې وزارت وروسته د دولت له ارزښتمنو ځانګو څخه ګڼل کېده.

د احمدشاه سرليکونکي «سعادت خان سدوزی» او «ميرزا هادي خان» وو او د زمانشاه پر مهال دغه کارونه دوو سرليکونکيو «ميرزا محمد شريف خان» او «ميرمحمد علی خان» پرمخ بېول. (۲)

## د دربار اداري:

د احمدشاه مهال د دربار اداري د برې او ځينې يې خپلواکې ګڼل کېدې، سره له دې

---

(۱) قباله د کندهار ښار او سېدونکي محمد رحيم خان پلورلې ده چې لاندېنی ځانګړتياوې لري:
د قبالې کاغذ ژېړ و پېړ، مخ (۸×۱۰ انچه) په تور رنګ او سرو نښو ليکل شوې. د قبالې پر سر د قاضي لوی او ګرد مهر له دغه مسجع بيت سره ليدل کېږي:
چون مفوض شد به تيمورشاه شاهی از کريم قاضی اسلام شد از صدق دل عبدالرحيم (۱۱۸۷)
د قبالې پر څنډه د محکمې د رسمي غړيو (نايبان و مفتيان) (۸) لوې او واړه مربع و مسجع مهرونه دي چې دوه لوی يې په دې ډول لوستل کېږي:
لومړی: از عطای خدای هر دو جهان پېرو مصطفی بود عمران
دويم: ز الطاف شاهجهان خوشدلم غـلام همايون روشندلم
د قبالې د ليکلو نېټه د (۱۱۹۹) سپوږميز کال د جمادی الثانی (۱۷) ده او داسې په کې راغلي: «فروش هشت سهم مساوی هشت شبانه روز آب و زمين از يک دهنه قنات مشهور به «سوره» واقع در محال پوشنج (پښين) من توابعات اشرف البلاد احمدشاهي، از طرف عبدالله خان ترينی عبدالرحمن زايی ... به محمد نام... در بدل مبلغ (۸۹) تومان و (۲) هزار دينار تبريزی نقد که عبارت از يکهزار و هفتصد و هشتاد و چهار روپيه بوده باشد..... »
دا چې په کندهار کې لوی کاريز پر يوه شپه ورځ درې خرواره تخم ځمکه پوښوي، منځنی کاريز يو خروار او کوچنی کاريز تر دې لږ، نو د کندهار يو خروار چې د کابل له ٦٢ نيمو منو سره سم دی په لسو جريبو کې شنل کېږي، نو په قباله کې تو له ليکل شوې ځمکه (که کاريز يې منځنی وګڼل شي) (۸۰) جريبه ده چې د يوه جريب بيه يې ۲۲ نيمې روپۍ کېږي.
(۲) سراج، ۵۵-٦۵ مخونه.

يې هم يو سړی په سر کې و چې د نن ورځې د دربار له وزير سره سمېده. دغه سړي ته «ايشک آقاسي» ويل کېده. د احمدشاه ايشک آقاسي« عبدالله خان» و چې يو مهال کشمير ته د تلونکي لښکر کوماندان و چې هغه ولايت يې ونيو او له افغانستان سره يې وتاړه. (۱)

## عرض بيگي:

دغه نوم او دنده يې موږ ته ښکاره ده او تر اوسه شته چې د وګړيو غوښتې پاچاه ته وړاندې کوي او بېرته يې ځواب راوړي. د احمدشاه عرض بيگي« حاجي کريمداد خان» و چې وروسته کشمير ته د نايب الحکومه په توګه ولېږل شو. (۲)

## مهماندار باشي (مېلمه پال):

دغه سړي د تشريفاتو د مدير په توګه د شاهي دربار د مېلمه پالنې دنده لرله. فيض محمد د زمانشاه د مهال مېلمه پال د «حفيد احمدشاه» په نامه راپېژني. (۳)

## د پخلنځي ځارن:

دغه سړي د پاچاه، دربار وشاهي کورنۍ د خواړو برابرولو چارې ځارلې، خو دا چې د احمدشاه پر مهال څوک و څرګنده نه ده، فيض محمد د تيمورشاه پر مهال د پخلنځي د ځارن په توګه د «داحمدشاه د زوی» نوم يادوي چې د پېښور په جګړه کې ووژل شو. (٤)

## جهرچي باشي (وياند):

سرتېريو، مامورانو او وګړيو ته يې د پاچاه امرونه خپرول او درباري ارزښت يې لاره. د تيمورشاه وياند« زنګي خان» وچې د اتلسو زرو سرتېريو مشر او د پنجاب د سرغړاوو سيکانو د ځپلو له پاره ولېږل شو، همدا چې پاچاه د پېښور په ډګر کې پر پيل سپور او دده لښکر يې کوټ، نوموړی له دود سره سم دري ځله د پاچاه له پيل نه تاو او د خپلې دندې ځای ته روان شو او بري يې وګاټه.

---

(۱) سراج، ۱۷ مخ    (۲) سراج، ٤۱ مخ.    (۳) سراج، ٤۹ مخ.    (٤) سراج، ۳۷ مخ.

## اوردو باشي (د محمد زیو د لومړي پېر «عمله باشي»):

دغه سړی په تم (حضر) کې د پاچاه د دربار د کارکوونکیو او ساتونکیو د چارو سموونکی و او په یانه (سفر) کې د تلونکي پوځي او ملکي گرد پلاوي سمبالونکی گڼل کېده. ترایشک آقاسي وروسته اوردو باشي د دربار دویم چارواکی و. د احمدشاه اوردو باشي «عبدالله خان» نومېده چې پر هندوستان باندې د احمدشاه د لومړي برید پرمهال لنډه موده د سرهند کلا مشر شو. منشي عبدالکریم د احمدشاه د مهال پېښو په ترخ کې دوځله دغه نوم یاد کړی دی.

## پیشخانه چي:

د محمد زیو د پېر د (فراشباشي) په څېر وچې د پاچاه و دربار د یانه اړتیاوړ لوښي یې برابرول. سلطان محمد د شاه شجاع د پیشخانه چې یادونه کړې ده. (۱)

## پیش خدمت باشي:

د محمد زیو د پېر د (فراشباشي) انډول و. دا سړی د پاچاه او دربار د یانه د لوښیو سمبالوونکی و. سلطان محمد، د شاه شجاع د ځانگړي چوپړ «دین محمد خان» یادونه کړې ده. (۲)

## نسقچي باشي:

دا سړی د «نسقچیان» په نامه د یو ډلې مشر و چې تل یې د پاچاه له رکاب سره اړه لرله او په تم و یانه کې یې د شاه ملکي، پوځي او جزایي امرونه پلي کول. تیمور چې د احمدشاه له اجازې پرته له هراته د پلار لیدو ته راغی، د احمدشاه د نسقچیانو له خوا د «واشیر» په سیمه کې بېرته هرات ته ولېږل شو. «محمد یحی خان» د زمانشاه مهال نسقچي باشي و. (۳)

## ځانگړی ندیم یا د پاچاه خوالگر:

خوالگر به چې هر څوک و، د ابدالیانو د دربار له مخورو درنو څخه گڼل

(۱) سلطاني، ۱۱۹ مخ. (۲) سلطاني، ۲۷۳ مخ. (۳) سراج، ٤٨ مخ.

کېده. « فتح الله خان سدوزی » یو له همدغو خوالگرو څخه و چې په همدغه نامه د « تیمورشاه » په دربار کې پېژندل شوی و. (۱)

## خواجه سراباشي:

د پاچاه د ارګ د خواجه سرایانو مشر و چې ځینې مهال ارزښتمنو دندو ته لوړېده. د احمدشاه خواجه سراباشي « یاقوت » نومیده چې د شاه په ځانګړیو محرمانو کې راتلو. همدا راز د هندوستان د لکنهو د عالیجناب نواب شجاع الدوله کورنی « یوسف علیخان » د احمدشاه له خواجه سرایانو څخه و چې په دربار کې یې « التفات خان » بلنوم موندلی او و مهال د هېواد خزانه دار هم شو. (۲) اټکلېدای شي چې د احمدشاه په دربار کې نور چارواکي هم وو، لکه: قابوچي باشي، طبیب باشي او څو نور باشیان چې زموږ تاریخونو یې یادونه کړې نه ده.

## میراخور باشي ګري:

دا یوه پراخه څانګه وه چې د یوه لوی میراخورباشي او یا هم د دوو میراخور باشیانو تر لاس لاندې یې چې یو یې لوی او بل یې ځانګړی و د شاهي څارویو چارې سمولې، کوچني کارکوونکي یې میراخوران، نایبان و مشران وو. دا هماغه څانګه ده چې وروسته یې د « دکمند دفتر » په نامه د « سراج الملت و الدین » ترمهاله کار کاوه. نوموړې ستره څانګه د یوه وزارت یا د لېږدونو د خپلواک مدیریت انډول وه.

میراخورباشي ګری د هېواد په ټولو سېمو او پوځي اډو کې د آسونو، کچرو، اوښانو، خرو، غوایانو او پیلانو چارې سمولې او د باروړونکیو څارویو کول، ورشوګانې او پنډعالي یې څارل.

میراخورباشي ګری د لېږدونو په اړه له دفاع و دربار وزارتونو او د لګښتونو او شمېر په اړه له مالیې وزارت سره اړیکي لرل. میراخور باشي د دولت په لویو کارکوونکیو کې ګڼل کېده. د زمانشاه د مهال میراخور باشي « سردار احمد خان » د سرغړاو شهزاده محمود پر وړاندې فراه ته د تلونکې ډلې کوماندان وټاکل شو، همدا راز

---

(۱) سراج، ۳۷ مخ. (۲) سراج، ۳۰-۳۸ مخونه.

د سردار پاینده خان زوی میراخور «فتح خان» د کندهار پوځي کوماندانی ته ورسېد.[1]

## خزانه داري:

د احمدشاه پر مهال نغدي خوندیني او جنسي زېرمې د یوه مشر تحویلدار تر لاس لاندې وې چې «خزانه چي» او «خزانه دار» نومیده. دغه خزانه دار د دربار له خورا باوري غړیو څخه و چې د شمېرو اړیکو ځای یې د مالیې وزارت او لګښت لاسوندونه یې د پاچاه فرمانونه او د دفاع و مالیې وزارتونو لیکنې ګڼل کېدې. په تاریخ کې د «ابوالحسن» په نامه د شاه شجاع د نغدي او جنسي خزانه دار یادونه شوې ده.[2]

## داروغه ګي، اخبار ځانګه او هرکاره باشي:

دا د استخباراتو خپلواک ستر توب و چې سیده یې د پاچاه تر څارنې لاندې کار کاوه او د خورا پاملرنې وړ و. د جاسوسی په ځانګه کې یې پاک زړي نارینه او ښځینه کارکونکي لرل، د دغې ځانګې هڅو د دولت په پرمختیایي چارو کې ډېره مرسته کوله، فیض محمد په دې اړه پرزړه پورې تکي لیکلي چې په ترڅ کې یې وایي: «احمدشاه د رسمي کارکونکیو له خوړا پټو چارو څخه خبر و، چې کله، کله یې د اړتیا له مخې بر سیرول. د اطلاعاتو او خبرونو د همدې بې کچه پراختیا له امله، وګړیو دا د احمدشاه کرامات بلل.[3]

(۱) سراج، ۴۹-۵٤ مخونه.　　(۲) سراج، ٦۷ مخ.

(۳) د سراج التواریخ له قلمي آرلیک ٦۹ مخ څخه:

دغه یوازېنی قلمي لیکنه په ځینو ځایو کې له چاپ شویو لیکنو سره توپیر لري او هغه دا چې په چاپ کې یې ځینې تکي لوېدلي چې په آر قلمي لیکنه کې شته. ددې لیکنې په هره برخه کې د مضمون و پارسي او عربي کرښو لیکنی سموالی ښوونکي «مولوي عبدالروف خان» او منشي «میرزا عبدالطیف خان» پر ګوته کړي او ځینې قلمي سمون هم په کې راغلی دی. امیر حبیب الله خان چې ددې لیکنې آر لامل او مشر سموونکی و، د کتاب په هر څپرکي کې یې تر کتلو او لاسلیک وروسته د چاپ لارښوونه کړې او ځینې ځایونه یې په خپل لاس سمونې، اړونې او وېستنې هم په کې کړې دي. د قلمي لیکنې ارزښت هم له همدغه ځایه پیلېږي. د پاچاه ځینې لاسي سمونې چې دده د تاریخي ذوق او سیاسي اند څرګندوېې دي خورا پر زړه پورې او هېښنده بریښي، له هغو غورځونو څخه چې په چاپي لیکنه کې شوي یوه هم سردار سلطان محمد خان و امیر دوست محمد خان ته د نومیالي هندي مجاهد سید احمد لیکونه دي. د سېداحمد خان دوه ګوني لیکونه چې د هغه د شاګرد او نېژدې مرید مولوي اسماعیل خان په لاس لیکل شوي خورا څرګند او ښکلي دي. دا قلمي لیکنه د (۱۳۳۰) سپوږمیز کال په میاشتو کې پیل او د (۱۳۳۲) په روژه کې پای شوې چې اوس په کندهار ښار کې د مولوي عبدالروف په کاله کې ده

خو فیض محمد خان دا اداره نه پېژني او په بل ځای کې د زمانشاه پر مهال د «داروغه ګي او د ټول هېواد هرکاره باشي» په اړه غږېږي، خو هاغه مهال «هرکاره» پټوڅريو ته ویل کېده.

داحمدشاه همهمالی مورخ «ابن محمد امین» څو ځله د «هر کاره» او «هرګاره ګانو» په نامه د هند دولت د پوځي څريو یادونه کوي.[1] همدا راز د احمدشاه بل همهمالی «مرتضی حسین بلګرامی» چې د اورنګزیب لیکلې پاڼې را اخلی د هغوی په یوه کې ملکي پټ څري «هرکاره» نومېږي.[2] نو هرکاره باشي هماغه د جاسوسي اداري مشر دی چې د خبرونو د څانګې نوم دا وینا رښتینې کوي، د اردو ژبې سیندونه هم «پیک» پر هرکاره ژباړي. په هر ډول، د زمانشاه پر مهال د «د خبرونو د څانګې دا روغه او د ټول هېواد هرکاره باشي» د نومیالي سردار جهان خان وراره «میر هوتک خان» و.[3]

## ضبط بيګي ګري:

راته څرګنده نه شوه چې د دې دندې خاوند څه ډول ملکي یا پوځي چارې سرته رسولې، ځکه چې اوس د نورو څېړنې او پلټنې مهال راسره نه و، سره له دې هم اټکلولای شو چې ضبط بیګي د کوتوالی او پولیس دنده لرله، ځکه دا ناشونې ښکاري چې د احمدشاه پر مهال کوتوالي او پولیس څانګه نه وه او په هیڅ یوه عربي، پارسي او پښتو نامه، لکه: امیرشرط، شحنه، عسس، میرشب، میرشبګیر و کوتوال دې یې یادونه شوې نه وي، پر داسې مهال چې تر احمدشاه څو پېړۍ مخکې او وروسته په افغاني دولتونو کې دا څانګه وه او په یوه پورتني نامه په تاریخونو کې یاده شوې ده.

فیض محمد خان د «زمانشاه» او «شاه شجاع» ضبط بیګیان د «اسلام خان» و «محمد شریف خان» په نومونو یادوي.[4]

---

(۱) مجمل، ۱۰۱-۱۰۲، ۱۰۳-۱۰۱ مخونه. (۲) حدیقة الاقالیم، د مرتضی حسین بلګرامي لیکنه، د لکنهو د نولکشور چاپ، ۱۲۹۶ هجري، ۱۱۳-۶٤۰ مخونه.

(۳) سراج، ٤٥ مخ.

(٤) سراج، ۵۹-۷۱ مخونه

## سلاکاره غونډه:

د احمدشاه مهال سلاکاره غونډه په پلازمېنه کې یوه تلپاتې جرګه وه چې د افغاني ټبرونو لوی خانان و سرداران او د سترو ټبرونو اړوند ځینې لوي کارکوونکي او چارواکي یې غړي وو. د غونډې غړي د ژوندانه تر پایه، په خپله پاچاه ټاکل او ګوښه کول یې هم دده په خوښه وو.

د غونډې غړیو د پاچاه او دولت د پلاوي پر وړاندیځونو غور کاوه او د خپلو غوښتنو پایله یې احمدشاه ته وړاندې کوله. سره له دې چې احمدشاه د پاچاه په توګه د بشپړ واک خاوند و نامسؤول، د صدراعظم په توګه د پلي کوونکي ځواک مشر، د وسله وال پوځ لوی کوماندان، د ملي شورا د غونډې پرځای د هیواد ځانګړی مقنن، د قضایي محکمو په سر کې د جزا لوی قاضي او همدا راز د اولی الامر په نامه د ټولو تر لاس لاندې هیوادونو مذهبي لارښود ګڼل کېده، خو سره له دې هم داسې لږ پېښېده چې د دې غونډې د وړاندیځونو او پریکړو خنډ شي، همدا لامل و چې ګرد افغاني مشران و ټبرونه د احمدشاه د ژوندانه تر پایه دده په ټولو کورنیو او بهرنیو چارو کې د زړه له کومې ورسره ملګري او چمتو وو.

## په ولایتونو کې:

د احمدشاه مهال افغانستان پر ولایتونو او ولایتونه پر ولسوالیو وېشل شوي وو. په ولسوالیو کې کلي او بانډې هم راتلې. د ولایتونو او لویو ولسوالیو مشران د پاچاه له خوا ټاکل کېدل، همدا راز د «سرلښکر» په نامه پوځي کوماندان و مستوفیان هم پاچا ټاکل. نور کشران و واړه کارکوونکي د ولایتونو د مشرانو او وزیرانو له خوا او کله هم د پاچاه له فرمان سره سم ټاکل کېدل.

د بېرې لویې ولسوالی د ولایتونو اړوند نه وې او مخامخ یې له پلازمېنې سره اړیکې لرل. د ولایتونو او ولسوالیو مشرانو ته «حاکم» ویل کېده او د ولایتونو مشرانو د «نایب وپیش کار» په نامه یو یا دوه مرستیالان هم لرل. کله، کله د ولایتونو مشران پر یوه مهال پوځي کوماندانان هم وو خو ځینې مهال پوځي ځواک بېل کوماندان لاره.

د ولایت مشر (نایب الحکومه) په خپله سیمه کې د پراخ واک و بشپړې خپلواکۍ

خاوند و ، ځکه چې پلازمېنې له هغه نه دا دوه تکي غوښتل:

یو ، د تولنیز امنیت ساتنه . دویم ، منځنی خوندیینې ته د ولایت د لګښتونو تر سپما وروسته د مالیو رسول.

د ولایتونو مشرانو د روښانه شرعي له امر پرته د وژلو او د پوځي ځواک د کمولو حق نه لاره ،خو که شاهزی به و د سکې او خطبې له حق پرته یې د سلطنت له مقام سره ستر تو پیرنه و.

هغه ولایتي اداري چې له والي سره یې کار کاوه مشران یې دا وو: سرلښکر (پوځي کوماندان) ، مستوفي ، قاضي ، قلعه بیګي (کوتوال) ، نظام دفتري ، باجګیر (د ګمرک مدیر) ، میراخور (د لېږدونو مدیر) ، میرآب ، د خالصه جاتو مدیر ، ښاروال او داسې نور واړه کارکوونکي.

ولایتي ادارو له وزارتونو سره د برابریکي نه لرل ، یوازې یې له مالیې وزارت سره د دیواني شمېرنو له پلوه سرو کار و ،

خو د مالیې وزارت هم کړای شول چې د څو کالو تر تېرېدو وروسته دومره ځان وپوهوي چې د ولایتونو د هاغه تېر کال ګټه څومره وه؟ له هغې نه څومره لګېدلي او خوندیینې ته رسیدلي؟ او څومره پاتې دي؟ چې لړلیک یې د کورنیو چارو وزارت ته له ملک نه د اخیستو له پاره ولېږي.

د احمدشاه مهال کلي او بانډې د حاکمانو له خوا د ملک ، خان ، سرکرده یا سلطان په نامه د سیمه یزو خانانو په مرسته اداره کېدې ،د غه ملکان په خپله له سیمه یزو مخورو او شتمنو پورورکونکیو خانانو څخه وو چې وګړي یې پوروړي وو ، دوي په خپلو سیمو کې خورا خپلواک ، واکمن او د ملت و حکومت ترمنځ برید ګڼل کېدل ، ځکه چې حکومت مخامخ له وګړیو سره اړیکي نه لرل او خپل مالیه ورکوونکي یې یو ، یو نه پېژندل ، په سیمه کې یې یوازې ملک پېژانده او پر هغه پسې یې په مالي څانګه کې د کورنیو شمېر ، د ځمکو کچه او د هغې سهمي تو له دیواني مالیه لیکله او د بېګارو سیورسات ګردې چارې یې له هغه نه غوښتې. ملک هم چې څنګه غوښتل و کول هغسې یې له وګړیو اخیستل. ځکه نو نیاو او حقوق خوندي نه پاتې کېدل او د ملکانو شتمني په ناوړه توګه ډېرېده. ملکانو د وګړیو ترمنځ د جوړ جاړي او حقوقي محکمو دندې هم

پرمخ بېوي او سیمه یز مشران یا علاقه داران ګڼل کېدل. (*) (*)هاغه مهال د هېواد اداري وېش لنډ او علاقه دار نه و. د محمد زیر پر مهال په لویو سیمو کې علاقه داران د «پوځدار» په بې انډوله نامه وټاکل شول. *** پر ګنو د ملک د ربړه ونو پر وړاندې د تپېبتې درې لارې لرلې:

لومړی، د حقوقي دعوو په اړه یې کړای شول چې د ملک پرېکړه ونه مني او لویو شرعي محکمو ته ورشي.

دویم، له ملک نه د بېزاری له امله یې کړای شول چې د مالي دفترونو په مرسته او د حاکمانو په منبت لېهغه نه ځان بېل او پر بل ملک پورې چې ان د پخواني سیال به هم و؛ وتړي.

دریېم، د ملک د ډېر تاو تریخوالي او تېري له امله یې کړای شول چې لویو مشرانو، وزیرانو او پاچاه ته ورشي او مرسته وغواړي. دا څرګنده ده چې په یوازې ډول د وروستی لارې خپلول دومره اغېزناک نه وو، خو که تولیزه بڼه یې موندلې وای د ملک په لرې کولو او دنوي پرټاکلو پای ته رسېدای شوه.

ملکان د وګړیو په خوښه او د مالي دفترونو او سیمه یزو حکومتونو له منبت سره سم ټاکل کېدل خو د لویو خانانو ټاکنه د پاچاه له فرمان سره اړوند وه.

په افغانستان کې د احمدشاه مهال د ځینو لویو او کوچنیو ولایتونو نومیالي مشران دا وو: د هرات مشر درویش علیخان هزاره، د مشهد مشر د نادرشاه لمسی شاهرخ، د نیشاپور مشر عباس قلي خان بیات، د بلوچستان مشر نصیر خان بلوچ، د ښکارپور مشر دوست محمد خان کاکړ، د سند مشر نورمحمد خان شهنواز، د ملتان مشر شجاع خان ابدالی، د دېره اسماعیل خان مشر موسی خان، د پنجاب مشر زین خان مومند، د کشمیر مشر خواجه عبدالله خان، د کلات مشر اشرف خان غلزی او نور...

# شلم څپرکی

## د احمدشاه پوځي جوړښتونه

## پوځي څانګې

د ټولو پوځي څانګو او ګرد پوځي ځواک په سرکې یو لوی کوماندان وچې «سپاه سالار» نومېده، دا څېره تر پاچاه وروسته دواړو افغاني ځواکونو کوماندان وچې د نننی مارشال یا ستر درستیز انډول ګڼل کېږي. دده تر لاس لاندې بېلا بېلې څانګې وې چې هرې یوې په خپله برخه کې د دفاع وزارت چارې پرمخ بیوې، له دوي څخه لویې پوځي څانګې دا وې:

### نظام دفتر:

دا دهاغه مهال تر ټولو لویه پوځي څانګه وه چې د اړتیا وړ لوښیو او شمېرنو، کارکوونکیو اولګښتونو او پوځي خوندیینو او زیرمو ستره برخه چارې یې سمبالولې او څارلې.

نظام دفتر د نننی دفاع وزارت انډول و، په دې مانا چې سرتېریو او افسرانو ته یې تنخا ورکوله؛ د اوردو د غله ګی لګښت یې ورکاوه؛ د افسرانو دوسیې او د سرتېریو شمېر یې جوړاوه؛ پوځي زېرمې یې برابرولې او څارلې او د ګرد اوزدو د ټولو چارو سمبالونکی ځای ګڼل کېده.

نظام دفتر د مالیې وزارت انډول ځواک و ، د هېواد ټولو زېرمو یې بې څنډو ډیله حوالې او سپارښتنې منلې او مالي څانګو یې مجرایي ورکوله. نظام دفتر د پوځي اوردو یوه بنسټیزه او تاریخي کړی وه چې عربو «دیوان الجند» باله، [۱] او په افغانستان کې پر لومړنیو اسلامي پېړیو «جریدهٔ سپاه» نومیده [۲] چې وروسته «د عرض وزارت او د عرض دیوان» ونومول شو. [۳]

په پلازمېنه کې نظام دفتر د سپاه سالار او په خپله د پاچاه او په ولایتونو کې یې اړوند څانګې د پوځي کوماندانانو تر لاس لاندې وې. د افغانستان په غزنوي دولت کې ددې څانګې مشر «عارض» نومېده، خو نه پوهېږو چې د احمدشاه پرمهال یې څه نوم و. فیض محمد یوازې د زمانشاه د مهال نظام دفتر یادوي [٤] خو د مشر نوم یې نه پېژني. سلطان محمد د شاه شجاع او د هغه د زوی فتح جنګ د مهال د «لښکر لیکونکي» په توګه د «میرزا حیدر علیخان» یادونه کوي. [٥] په دې کې څه اړنګ نه شته چې لښکر لیکونکي به د اوردو شمېر نه کوله [٦] خو څرګنده نه ده چې دغه نوم د احمد شاه پرمهال و او د نظام دفتر مشر پرې یادېده که نه؟ د محمد زیو پرمهال د نظام دفتر مشر «دفتری نظام» او «د نظام دفتر سر رشته دار» بلل کېده چې د سراج الملت والدین د پېر په وروستیو کې پر «امین نظام» واوښت.

## سیورسات چې:

داحمد شاه پرمهال د سیورسات چې په نامه یو سړی د اوردو د خوارو او واښو د برابرولو او له وګړیو نه یې د یانه پرمهال دراغونډلو پازمن و. ده به چې له هرې سیمې نه له سپارښتنې سره سم غله راټوله کړه، لیکلي به یې ورکړل. دده لیکلي او لاسلیک د هېواد په مالي څانګو کې د هماغې سیمې د مالیو پرځای د منلو وړ و. نو دا چې د جنسونو حوالې او سپارښتلیکونو او له هېواد نه یې راغونډولو او پر سرتېریو د هغوی وېشلو شمېرنې ته اړتیا لرله نو هرو ، مرو به یوې ځانګړې څانګې هم له سیورسات چې سره «که د لنډې مودې له پاره هم وه»؛ کار کاوه.

---

(۱) تمدن اسلام، د جرجي زیدان لیکنه، د مصر چاپ، ۱۹۰۲ کال، لومړی توک، ۱۲۳ مخ.
(۲) تاریخ سیستان، د ملک الشعراء بهار په سمونه، د تهران چاپ، ۱۳۱٤ لمریز کال، ۱٤٤ مخ.
(۳) بیهقي، ۳۱۱-۵۳۲ مخونه.
(٤) سراج، ٥٦ مخ. (٥) سلطاني، ۲۷۸ مخ. (٦) مجمل، ۸۳ مخ.

## قورخانه (وسله تون):

پوځي وسله تونونه د «قورخانه» په نامه د يوه لوی زېرمه وال (قورچي باشي) ترلاس لاندې وو چې نن يې «وسله پال» بولي. وسله پال ته اورني توکي او وسلې سپارل کېدې؛ هغه ساتلې او له اړتيا سره يې سمې اوردو ته رسولې. ده د باروت جوړونې دستگاوې هم څارلې. لکه څرگنده چې د احمدشاه وسلې جوړونې، مرمۍ جوړونې او اورنيو توکو ته ځانگړې پاملرنه لرله، له همدې امله يې د باروتو، شوري او داسې نورو کار ځي په کندهار ښار کې د ننه د سلطنتي ارگ کېڼ اړخ (لويديځ) ته جوړ کړي وو، او په خپله يې څارلې. د دغو کارځيو سيمه چې د توپخانې او شاهي غوجلې ترځنگ ده، د احمدشاه له مهاله تر ننه د «باروت خانې» په نامه يادېږي، همدا راز د احمدشاه مهال پرې کوونکې وسلې او د کندهار ښار صنعت، لکه: پيش کوزې، دوه خولې خنجرونه او نورې چې لاس ته راځي، پر ښکلا سربېره کلکې هم دي. احمدشاه اورنيو وسلو ته تر پرې کوونکيو ټيټ ارزښت نه ورکاوه. په دې اړه د هغه سترو نوميالی توپ يادولای شو چې پر ۱۱٦۸ کال يې په نېشاپور کې د جگړې پر ډگر جوړ کړ، د ځينو مؤرخينو په وينا يا اغراق و مبالغه دغه هېښنده توپ ۲۰ منه= ۵ . ۱۲ کابلې منه مرمۍ خوړه چې يو کلک ښار يې ړنگ کړ او ويې نيو.

بويه دا ټکې مو په پام کې وي چې د احمدشاه اوردو د پوځي چارو په يوه ستر اړخ کې د هاغه مهال له ملکي څانگو سره پراخ اړيکې لرل، څکه چې د احمدشاه د اوردو د ربيمه برخه نيم پوځيان (ولسي لښکر) وو او د دې لوېې برخې افسرانو خپل او د خپلو اړوند ټولگيو کالنی نغدې تنخاوې اوجنس د مالي څانگو د سپارښتنې او ليکليو پاڼو له مخې د هېواد له ماليو نه اخيستې او يا يې د خپلو جاگيرونو د سيمو د ماليې پرځای مجرايي اخيسته. په دې توگه د نيم پوځي ټولگيو او افسرانو د شمېر چارو ځای هماغه د ماليې وزارت او د هغې څانگې وې. د خواړو زېرمو (گودام) د ماليې پر وزارت اړه لرله چې د اړتيا پرمهال د اوردو ځينو برخو ته د غلې پروېش اړ وه، سربېره پر دې ټول افغاني اوردو په کورنيو او بهرنيو تگ راتگونو کې د لېږدونکيو او باروړونکيو څارويو د غوښتلو له پاره سپرلۍ څانگو او ملکي ميراخورباشي گريو ته ورتلل، همدا راز «اوردو باشي» چې د دربار له چارواکيو څخه و په جگړه يزو يونو کې يې ځينې پوځي سمونې هم کړای شوې.

# يوويشتم څپرکی

## اوردو

د احمدشاه اوردو له پوځیانو او نیم پوځیانو نه جوړ و، لومړی ډلې د «پوځ نظام» په نامه د اوردو د رښیمه برخه جوړوله او دویمه د «ارت پوځ» یا «سپاره خانان» په نامه د ټول اوردو دویمه برخه وه. پوځي سرتېري د رې ټولګي او نیم پوځیان ډېر په سپاره او لږ په پلي ټولګي کې وو.

### پوځي سرتېري:

دا سرتېري د ژوندانه تر پایه په خپله خوښه راټولېدل، نغده او جنسي تنخا له وسلې او سپرلۍ سره د دولت له خوا ورکول کېدې، یوازې د آس بیه ورو، ورو د سرتېري له تنخا څخه سپمېده. د سرې کالیو او خواړو او د آس واښو پر سرتېري اړه لرله. هغه څه چې په تم مهال کې سرتېري ته ورکول کېدل هغه یې د تنخا پر ځای وو او په یونو کې ځینې یې وړیا او ځینې په تنخا کې شمېرل کېدل. پوځي سرتېریو د جګړې له مهاله پر ته کالنی درې میاشتنی کورنی دمه لرله او د کال پاتې موده یې په خپلو پوځي اډو او چاونیو کې وسله وال پوځي کړاو او زده کړه کوله. د دغو سرتېریو ګڼ شمېر په پلازمېنه او نور یې په لویو ولایتي منځیو کې استوګن وو. هغه شمېر چې په پلازمېنه کې وو پر څو ډلو وېشل شوي وو، لکه:

د لښکر ماتونکیو زلمیو ډله، (شاهي ټولګي)، د ساتونکیو ډله (د پاچاد ساتونکي)، د سرتېرو ډله او نور.

پوځي سرتېري په درېو سپرو، پلیو او توپچي ټولګیو کې بوخت وو.

## سپور ټولګی:

د اوردو دري برخې ترې جوړېدې. وسلې یې پتیله یي ټوپک، توري، کرابین ټوپک و نېزې وې. شاهي سپاره د زغرې په لرلو له نورو سپرو ټولیو څخه غوره ګڼل کېدل. ټول سرتېري د بېلا، بېلو وسلو، لکه: ډال، خنجر و تبره په لرلو کې خپلواک وو. (اتم انځور کتلی شئ) د سپاره ټولګي سپرلی آس او (دجماز سوار) په نامه مهار شوی اوښ و، چې د اړتیا له مخې له سیندونو نه د تېرېدو پرمهال د پلي ټولګي په اوچتولو هم اړ و.

## پلی ټولګی:

د اوردو یوه برخه ترې جوړېده، وسله یې ټوپک وچاړه وه او د نورو وسلو د کارولو خپلواکي یې هم لرله.

## توپ ټولګی:

د غه ټولګي دوې برخې لرې چې یوه یې سپک او بله یې درانه توپونه وو. درانه توپونه په آسونو وړل کېدل او د احمدشاه په اوردو کې یې ارزښتمن ځای لاره، لکه د پاني پټ په جګړه کې (۱۱۷٤کال) چې د احمدشاه شپېته زریز اوردو د دښمن له درې سوه اوځلوېښت زریز اوردو سره جنګېده او د احمدشاه توپونو (ګڼ شمېر درنو توپونو) پر دښمن اور وراوه.

سپک توپونه یو ډول کوچني توپونه وو چې د «زنبورک یا شاهین و شهنګ» په نامه یادېدل او د اوښ پر شا وړل کېدل. دا توپونه په هوسایۍ سره له یوه ځایه بل ته خوځېدل او د جګړې پر ډګر د درنو توپونو په توپیر «چې د کرښو تر شا درېدل» په لومړۍ کرښه کې ځای پر ځای کېدل او پر ته له دې چې پر ځمکه خپاره شي د چوشوي اوښ له شانه یې د دښمن لیکې ویشتې، یا په بله وینا ننیو ماشینګړو ته ورته وو.

داحمدشاه د بدرگه والو سپکو توپونو شمېر د هغه د پاچاهي پرلومړي کال او و سوو زنبورک لرونکيو اوښانو ته رسېده او همدا شمېر يې د سرهند په جگړه کې (۱۱۶۱ کال) د دښمن پر وړاندې کارولي دي. څرګنده ده چې احمدشاه وروسته د هغوي شمېر لا پسې ډېر کړ.

داحمشاه توپچي کوماندان (توپچي باشي) «رحمان خان بارکزی» و چې تر اوسه يې کور د کندهار ښار د توپخانې په سيمه کې دی. او «رسول خان» هم د احمدشاه د شاهي لښکر کوماندان (قللراقاسی) و.

## لښکري جوړښتونه:

يو دلګی لس تنه او لس دلګي (۱۰۰) تنه يو تولی کېده، يو کنډک لس تولیه (۱۰۰۰) تنه وو چې دوه يا څو کنډکونه به يو ځای شول يوه قطعه يا مفرزه ترې جوړېده.

د اوردو د افسرانو (خورد ضابط، ضابط، آمران، ارکان) جوړښت او نومونه په لاندې ډول وو:

ده باشي (دلګی مشر)، يوز باشي (تولی مشر)، منګباشي يا بيګباشي (کنډکمشر)، امير لښکر (غونډ مشر).

د سپرو شاهي ټولګيو (لښکر ماتوونکيو زلميو) کوماندان ته «قللرآقاسي» ويل کېده او د کشيکچي (د شاه ساتونکيو ډلې) کوماندان «کشيکچي باشي» و. د سپکو توپونو کوماندان «شاهين چي باشي» يا «جزاير چي باشي» او جنګياليو ته يې «زنبورک چي يا شهنګ چي» ويل. د ټولو توپونو کوماندان «توپچي باشي يا مير آتش» و.

## لېږدونې:

د اوردو لېږدونې د آس، اوښ، خره، غوايه او پيل په مرسته کېدې. د جګړې پر ډګر جنګيالي پيلان هم د يرغل پرمهال د دښمن د کرښو د ړنګولو له پاره کار بدل.

نيم پوځي سرتېري:

د احمدشاه د ټول اوردو دوې برخې د «قامي لښکر يا سپاره خانان» په نامه نيم پوځي سرتېري وو. دغه سترولسی آره ځواک له دريبو برخوسپرو ټولګيو او يوې برخې

پلي ټولګي څخه جوړ او په لاندې ډول وېشل شوي و:

لومړی، هغه ډلې چې د جګړې پرمهال د هېواد له ځانګړيو سیمو څخه تر ټاکلیو آرونو لاندې په وسله وآله بنه چمتو کېدل او د احمدشاه له اوردو سره جګړې ته تلې او تر جګړې وروسته بېرته خپلو کورونو ته ستنېدې چې دولت بیا پر هماغه کال د نومورې سیمې د ېواني مالیه ورېښله، لکه د «کرم» سیند پرغاړه مېشتو «مروتو» چې د دولت دېواني مالیه د جنس په بڼه د کال دوه سوه او څلوېښت مهار شوي اوښان ورکول خود جګړې پر مهال یې د نومورې مالیې پرځای پرته له دولتي تنخا (۲۰۰) سپاره جګړې ته چمتو کول.

دویم، د قامي لښکر ډلې چې د دولت له آرونو سره سم د ټېرونو د مشرانو له خوا د جګړې له پاره چمتو کېدې او تر جګړې وروسته بېرته سره بېلېدلې او پرخپلو کارونو بوختېدلې دا ډله پرته له هغو ورځو چې د جګړې پرمهال یې دولت ته سوبتیا ورکوله، نور یې له ملکي او پوځي ځانګو سره اړیکي نه لرل او یوازې یې مشرانو له دولت څخه د خپلې اړوند ډلې د تنخا او لګښتونو په نامه د کال یوه اندازه پیسې او جنس تر لاسه کاوه. نومورې تنخاوې د دولت له خوا په ځانګړې ځای کې د کوماندان د جاګیر په توګه ټاکل شوې وې چې د دولت په مالي ځانګو کې د راتلو او وتو په بڼه شمېرل کېدې او یا د هېواد په نورو سیمو کې کالنی حواله او سپارښتلیکونه ورکول کېدل چې د ډلې د کوماندان له خوا په خپله اخیستل کېدې او لګېدې. دا ډله په تم ورځو کې له نورو ملکي او پوځي چارو څخه ګوښه وه او دولت د کورنی او بهرنی جګړې له ورځو پرته هغه نه پېژنده.

درېیم د سپرو خانانو ډلې چې په تم ورځو کې هم د پوځي سرتېريو په څېر وسله والې وې او په ټاکلي وار یې په هېواد کې دغه دندې پرمخ بېوې:

د بریدونو ساتنه، د پورونو راټولول، د دولتي زېرمو ساتل، د کوټوالی پرځای د سیمه یزو حکومتونو داداري چارو سرته رسول او داسې نور.

ددې ډلې د غړیو نومونه په ځانګړې ځانګه کې لیکل شوي وو. دا هماغه ځانګه ده چې د محمد زیو پرمهال یې نوم «سان وچهره» شو او دامیر حبیب الله خان د مهال تر پایه روغه وه. دلته به هر کال سوبتیا کېده او د سپیو، ژوبلو آسونو او وسلې تر کتو وروسته

يې رسمي تصديق کېده. ماليې وزارت او د هغه اړوند څانگو د تصديق له مخې د ډلې د نغدي او جنسي تنخا پرځاي په شتمنيو کې د بوانې ماليو حوالې او سپاربښتکليونه او يا يې د ډلې د کوماندان جاگير ورشمېره.

## د نيم پوځي لښکرو جوړښتونه:

همدا چې د پاچاه د فرمان له مخې به د چا د کوماندانۍ رتبه او د هغه د پليو او سپرو شمېر وټاکل شو، نوموړي به که شاهزی و، که وزير يا مامور و که خان د خپلې ډلې پر جوړولو يې پيل کاوه او خپل ازيزان، گاونډي، نوکران و آشنايان به يې په کې راغونډول؛ آسونه او وسلې يې ورکولې او د ډلې خورد ضابطان يې ټاکل، خو د آسونو بيه ورو، ورو د سرتيرويو له کالنۍ تنخانه بيليده او وسله د امانت په ډول پاتې کېده. ځينې مهال د وسلې بيه هم ترې اخيستل کېده، له ځينو کوماندانو سره دولت د وسلې مرسته هم کوله او وروسته يې بيه له تنخا څخه گرځوله.

که د ډلې کوماندان به کوچنی و «سپور... مشر» که منځوی و «سپور... خان» او که لوي به و «سپور... سردار» يې باله.

همدا چې د ډلې غړي به سلو ته ورسېدل، کوماندان يې رېي (بيرغ) اوچتولای او نغاره يې غږولای شوه.

نيم پوځي ډله له پينځو سپرو نه پيل او ترځو سوو ان څو زرو پورې رسېده. د ډلو منځنی جوړښت هم پر لس کسزو دلگيو ولاړ و، خورد ضابط يې «ده باشي» نومېده. لس دلگي د «بيرغ» په نامه يو ټولی کېده او مشرته يې «بيرغوال» وايه، په دې توگه ټول ده باشيان، د بيرغ منصبداران و بيرغوال د ډلې افسران گڼل کېدل.

ډله د خپلو دندو دننه خپلواکه وه او له بل هيڅ پوځي مقام سره يې اړيکي نه لرل. کوماندان يې په خپله پوځي دنده کې خپلواک و او په ملکي دندو لکه: ملکی، حاکمی او نورو کارونو کې يې« که لرل به يې » له اداري آرونو سره سم چلند کاوه او پر يوه مهال يې دواړه ملکي او پوځي پازې سرته رسولې.

د نيم پوځي ډلو کوماندانان، تم مهال په ولايتونو کې د نايب الحکومه گانو او په پلازمېنه کې د کورنيو چارو د وزير (لومړي وزير) ، دفاع وزير او پاچا تر لاس لاندې وو

او په جګړه یز یانه کې د پوځي سرتېرو دلوی کوماندان منونکي وو. په کورنیو او پوځي چارو کې به چې دوې یا څو نیم پوځي لښکرې په ګډه لېږل کېدې مشتري یې هغه چاته سپارل کېده چې تر نورو کوماندانانو یې د ډلې د غړیو شمېر ډېر و.

## د اوردو شمېر:

احمدشاه چې له خوراسانه کندهار ته راغی او پاچاه وټاکل شو، شپاړس زره وسله وال سرتېري یې لرل او همدا چې د پاچاهی پر لومړي کال د اوردو پراختیا ته څېر شو، د محمد امین د وینا له مخې یې شمېر څلوېښتو زرو ته ورسېد. تاریخ لیکونکي د هند د ځمکنیو یونو په ترڅ کې د هغه د جنګیالیو شمېر له دوولسو زرو نه تر اتیا زرو پورې لیکي او هماغه مخکښی مورخ د خوراسان په یونونو کې د احمدشاه د جنګیالیو شمېر په اغراق سره له اویا زرو نه تر یو سل وشل زرو پورې ښیي.

په هر ډول، ښایي دا ومنو چې احمدشاه د جګړې پر یوه ډګر هم ټول افغاني اوردو کارولې نه دی ځکه چې د هغه ارت هېواد له آمونه تر عمانه او له خوراسانه تر ستلجه د تل له پاره ساتونکیو سرتېریو ته اړ و.

یو مؤرخ د احمدشاه د ځای ناستي تیمورشاه د اوردو شمېر تر اتیا زرو جنګیالیو هم ډېر ښیي او فیض محمد د احمدشاه د لسمي زمانشاه د اوردو شمېر داسې څرګندوي:

د «غلام خانه» په نامه سپاره شاهي ټولګي د پېنځو کوماندانانو تر لاس لاندې: (دوولس زره سپاره)

دده باشي، منګباشي او قللرآقاسي په نامه افسرانو تر لاس لاندې سپاره شاهي ټولګي: (دوولس زره سپاره)

د درانیو سپاره ټولګي: (ډېرش زره سپاره).

د ترینو، هوتکو، توخیو، اندړو، ترکیو، بلوچو او نورو (... ).

د اوښ سپرو ټولګي: (... ).

پلي ټولګي: (ډېرش زره او نه سوه پلي).

د سند، ملتان و ډېرو په پوځي اډو کې درسالې مېشت ټولګي او پلي کندکونه: (پېنځلس زره پلي)

نوموړي مورخ پر پورتني څرګندونه سربېره د زمانشاه سپاره ټولګي (شپږ اتیا زره) او د پنجاب په جګړو کې «له پلیو ټولګیو پرته» جګړه یز اوردو (سل زره) او ټول اوردو (یوسل و د بېرش زره) جنګیالي ، لیکي.[1]

نو د احمدشاه د هېوادونو د پراختیا ، ګڼ شمېر جګړه یزو یانو او د جګړې پر ډګرونو د هغه د سرتېریو د شمېر «د شپېتو زرو په شا و خوا کې» له په پام کې نیولو سره اټکلولای شو چې د هغه د ټول اوردو شمېر یو سل و شلو زرو جنګیالیو ته رسېده. دا شمېر د احمدشاه مهال له جغرافیایي، سیاسي، اقتصادي او پوځي او تاسره هم سمون لري. د دغو ټکیو تر منلو وروسته بنایي لاندېنۍ کربنې په پام کې ولرو:

د افغانستان اوردو د احمدشاه پر مهال څه د پاسه یوسل و شل زره تنه وو، د دغه اوردو ۲/۳ برخې (اتیا زره سرتېري) نیم پوځیان او ۱/۳ برخه یې (څلویښت زره سرتېري) پوځیان وو.

د ګرد اوردو درې برخې (نوي زره تنه) سپاره ټولګي او یوه برخه (دېرش زره تنه) یې پلي ټولګي وو.

د درنو او سپکو توپونو لوی ټولګي هم په دغه شمېر کې راتلل.

## داوردو تنخاوې:

د احمدشاه اوردو د تنخا په اړه یې د شمېر په څېر زموږ په تاریخونو کې څه نه شته. یوازې فیض محمد د احمدشاه د لمسي «زمانشاه» د اوردو د تنخاوو په اړه داسې لیکي:

د زمانشاه دوولس زره شاهي رسالې «د زلمیو لښکر» خپله کالنۍ تنخا له نظام دفتر نه نغده اخیسته چې د هر یوه کالنۍ تنخا له «لسو» نه تر «پنځلسو» تومانو وه، «تومان په افغانستان کې چلېده او شل روپۍ کېدې، د پارس چلېدونکي تومان پنځه

(۱) پر پورتني وېش د پوهېدو له پاره «سراج التواریخ» (٥٦) مخ کتلی شئ. د امیرشیرعلي خان پوځي سرتېري یوازې په پلازمېنه کې شپېتو زرو ته رسېدل او میر عبدالرحمن خان د هغه څه له مخې چې دده د مهال له نظام دفترونو څخه څرګندېږي ټول پوځي سرتېري، سپاره خانان، خاصه دار، اردلیان و سرداران یې سل زره سرتېري وو. امیرحبیب الله خان دغه شمېر شپېتو زرو ته راټیټ او خاصه دار ډلې یې لرې کړې. ددغه پاچاه ځای ناستي سپاره خانان هم وشنل او د ټولو پوځي سرتېریو شمېر یې دېرش زره پرېښوو.
د محمد زیو پر لومړي پېر دامیرشیرعلي خان له مهاله تر امیرحبیب الله خان پورې پلي کنډکونه شپږ سویز وزریز ، پلي ټولي سلېز، او «ترپ» نومي سپاره کنډکونه درې سویز وو. په همدې توګه کنډکونو هم ځانګړي نومونه لرل، لکه: نقره پوښ کنډک یا پلټن، رساله یا ترپ، حیدري او...

روپۍ دي » د زمانشاه « دوولس زره » بدرګه لښکر ډېرو نغده تنخا او ځينو نيمه نغده او نيم جاګير لاره. ددې ډلې افسران د پاچاه ښنبليو شتمنيو په لړلو سرلوړي وو[1] له دې څرګندونې نه ښکاري چې لومړۍ د زمانشاه د سرتېرو تنخايو تر بله توپير لاره او لې و ډېره وه، دويم دا چې جنسي تنخايې هم اخيسته او دريم دا چې ګنو پوځي افسرانو ته د تنخا پرځای جاګير ورکړ شوی و، په دې توګه ويلای شو چې:

د زمانشاه د اردو د سپاره ټولګي (لوړ پوړ شاهي لښکر) يوه سړي ته د کال (پينځلس تومان= درې سوه روپۍ) تنخا ورکول کېده چې د مياشتې (۲۵) روپۍ کېدې ، د منځوي پوړيوه تن ته د کال (لس تومان= دوه سوه روپۍ) تنخاوه چې د مياشتې (شپاړس روپۍ او څو پيسې) کېدې. دا چې دغه دوه پوړه ځانګړې شاهي لښکرې وې، نو د اردو نورو سپرو فرقوته « که پوځي وي که نيم پوځي » دريم پوړ هم تاکلای شو، په دې ډول ښايي چې د هر سپاره تنخا تر لسو تومانو ټيټه وه او د اردو پليو ټولګيو تر سپرو هم لږ تنخا لرله، يا په بله وينا د تنخا له پلوه په څلورم پوړ کې راتلل.

زما په اند په ټوليز ډول د زمانشاه د اردو يوه سپاره ته د کال تر (اتو تومانو= يوسل وشپېته روپۍ) چې د مياشتې (۵ ، ٦ روپۍ او څو پيسې) شي ډېره تنخا نه ورکول کېده. د دغه اټکل د ريښتيا ينې له پاره لاندېنې لاسوندونه لرو:

د زمانشاه ورور « شاه محمود » چې د افغانستان دخول و پلاز هيله يې لرله، وروسته تر هغې چې د پلارني دوست دفرملي سپرو د مشر د محمد خان زوی « عليخان » برملې په مرسته د کابل بالاحصار له زندانه په تېښته بريالي شو، د پوځي ځواک د چمتو کولو تکل يې وکړ، خو دا چې بېرنۍ شيې وې، د زړونو د ترلاسه کولو او د سرتېرو د راټولولو له پاره يې په ګرشک کې د لښکر د سرتېرو مياشتنۍ تنخا (پينځلس پخې روپۍ) وټاکلې.[2]

(۱) سراج، ۵٦مخ.

(۲) سلطاني، ۱۷۸ مخ. پخه روپۍ دوه مثقاليزه سپينزرې روپۍ وه چې شپېته مسينې پيسې ترې جوړېدې او د امير حبيب الله تر مهاله دود وه خو اومه روپۍ تر هغې لږ او له پنځو سو مسينو پيسو سره سمه وه، کچ و وزن يې هم همداسې و، د کابل من (پوخ) اته سېره او د کابل خروار اتيا سېره و، خو د تبريز من (اوم) دوه نيم چارکه او خروار يې د کابل دوه شپېته نيم سېره کېده.

ښکاره ده چې هاغه مهال دا تنخا د بیړي له امله ډېره تاکل شوې وه. امیردوست محمد خان هم چې د شاه محمود او د هغه دورور شاه شجاع پرځای کیناست، د خپل پوځي اوردو جنګیالیو ته یې د میاشتي (شپږ روپۍ) تنخا ورکوله. د نیم پوځي سرتېریو ځینې افسران تر اوسه شته چې له ځان سره یې «د سراج الملة والدین» پر مهال (۸۰) سپاره لرل او هر کال یې د خپلې او سرتېریو د تنخا له پلوه له دولت نه (دوولس زره) نغدې روپۍ اخیستې، خو دا پیسې د کوماندان له خپلې تنخا سره هر سپاره ته د میاشتې تر (دوولسو) روپیو لږ رسېدې. [1] په دې توګه د احمدشاه د وروستیو، لکه: زمانشاه، شاه محمود و امیردوست محمد خان د اوردو ګانو د کالني تنخا له مخې دده د اوردو تنخا هم اټکلولای شو. زه دې پایلې ته رسېدلی یم چې د احمدشاه د سپرو ټولګیو هر سرتېري ته په میاشت کې (دوولس) روپۍ او د پلیو ټولګیو یوه سرتېري ته د میاشتې (شپږ) روپۍ تنخا ورکول کېده، په دغه توپیر چې د شاهي لښکر تنخا له نورو پوځي ټولګیو او همدا راز د پوځي ټولګیو تنخا له نیم پوځي هغو سره یو تر بله توپیر لاره او همدا راز د اوردو تنخاوې د نغدو او جنس په ډول ورکول کېدې.

(۱) د محمد زیو پر لومړي پېر د پوځي سرتېریو تنخا په لاندې ډول وه:

د امیردوست محمد خان د هر پلي سرتېري د یوې میاشتې تنخا شپږ پخې روپۍ، د امیرشیرعلی خان د پلي میاشتنۍ تنخا اووه پخې کابلۍ روپۍ او د سپاره یې د میاشتې نولس روپۍ، د امیرعبدالرحمن خان د پلي میاشتنۍ اته روپۍ او د سپاره یې په میاشت کې شل روپۍ، مانا دا چې د آس میاشتنۍ تنخا دوولس روپۍ وه خو شاهي لښکر (ګارد) تر نورو لوړ او د میاشتې یې د برش روپۍ تنخا اخیسته. دده تر (۱۳) کاله پاچاهۍ وروسته د هر سرتېري تنخا د میاشتې دوې روپۍ جګه شوه، په دې ډول چې پلي ته د میاشتې دوولس، سپاره ته څلورویشت او لومړني شاهي ته څلور دېرش روپۍ تنخا ورکول کېده.

# دوه ویشتم څپرکی

## د احمدشاه دولت ګټې او لګښتونه

هېوادنۍ ګټې: دااحمد شاه پر مهال د افغانستان ګټې سیده او ناسیده مالیې وې چې د «دېوانی مالیو» او «باج اخیستنې یا خرڅ اخیستې» په نومونو له کرنیزو ځمکو، بڼونو، ژرندو، کورنیو څارویو، کورنیو او بهرنیو سوداګریزو شیانو او کورنیو سوداګریزو صنعتي توکو څخه اخیستل کېده. د ناسیده مالیو شمېر ډېرو او له یوه شي نه د هېواد په بېلا، بېلو ځایو کې څو ځلې اخیستل کېدې.

سربېره پر دې د «خالصه جات» په نامه دولتي ځمکې د ګټې غوره سرچینه وه چې د کرنې یوه پر درې برخه یې دولت ته رسېده، ددغو چارو کارکوونکي ته «د ثالثات کارکوونکی» ویل کېده چې فیض محمد یې هم یادونه کړې ده. (۱)

ځینې مهال د مالیې کارکوونکیو او مشرانو دولت د نویو ناسیده مالیو په راوېستلو اړ کاوه او له دې لارې یې د هېواد سوداګرو کارګر تر کړاو لاندې راوستل. شاه شجاع څو تنه داسې کارکوونکي بندیان او له کابل نه یې دوسوه زره روپۍ نوې مالیه لرې کړه. (۲)

د سیده مالیې یوه برخه د ملکي او پوځي چارو د مشرانو سیمه یزو خانانو او داسې نورو د تنخا او جاګیر لګښت و او پاتې یې د دولت نغدي او جنسي خوندیینونه ته تله.

---

(۱) سراج، ۳۷-۱۶۵ مخونه. (۲) سراج، مخ.

سیده او ناسیده مالیه اجاره والو (تېکه والو) ته په اجاره (تېکه) هم ورکول کېده. تېکه وال چې په دې اړه د ملت واکمن و، د پراخ واک په مرسته یې مالیې راټولولې او دولت ته یې خپله برخه روپۍ په وار ورکولې. دوی له مالي څانګو سره د شمېر پرمهال د مالي څانګو د حوالو او سپارښتلیکونو، د زېرمو د رسېد پاڼو، د ټاکلیو اشخاصو د مالیو د بښنلیکونو او یا هم د بدو پېښو له امله د کرنیزو توکو د له منځه تګ د کچ مجرایې اخیسته، خو که د پاتې برخې په سپارلو کې به یې پښه ګوډه کړه نو د اخیستونکې څانګې له خوا به ترې غوښتل کېده.

له دوی څخه یو هم عبدالخالق سدوزی نارامه شتمن تېکه وال و چې د احمدشاه تر مړینې وروسته یې په «شپږسوو زرو» روپیو د «ښکارپور» د مالیې تېکه لرله، خو دا چې خوندیینې ته یې د پیسو په ورکړه کې ناغېړي کوله نو کلک چلندې اخیستونکې پرې وټاکل شول. نوموړی د دغه سپکاوي له امله واوښت او د تیمورشاه د دښمنو مشرانو په پارونه راپورته شو او وګړیو ته یې د شتمنیو تر وېش وروسته پر کندهار وسله وال یرغل وکړ او وروسته د کابل لوري ته وخوځېد، خو د تیمورشاه له خوا مات او وځپل شو.

ابن محمد امین دا پېښه په پراخ ډول څرګنده کړې ده.[1]

له دغو کرښو نه موخه دا ده چې د احمدشاه مهال د مالیې د تېکه والۍ او پور اخیستنې د ډول یوه بېلګه چې تر دې وروستیو (د سراج الملت و الدین مهال) په افغانستان کې دوده وه؛ وړاندې شي.

اوس به وګورو چې د احمدشاهي افغانستان کالنۍ ګټې څومره نغدې او جنس کېدې. په رښتینې توګه د دغه ټکي او څارول څه اسان کار نه دی، ځکه چې د هاغه پېر د ځمکو او نورو خوځنده او ناخوځنده شیانو د مالیو کچه پټه او د پلورلیو او پېرودلیو سوداګریزو توکو او داسې نورو د کچې په څېر ناڅرګنده ده.

سره له دې هم په دې اړه د تاریخ په پاڼو کې ځغلنده نغوتې شوي، چې د هغوی په مرسته تر یوه ځایه پرې پوهېدای شو، لکه مورږ وینو چې د احمدشاه پرمهال (۱۱۷۰) کال د افغاني پنجاب د ولایتونو د زمول شویو مرهتیانو کالنۍ مالیه د هغه ځای د مشر آدینه پرژمنه (اووه نیم میلیونه) روپۍ ټاکل شوې وه.[2] یا دا چې احمدشاه د «بنو» له

---

(۱) مجمل، ۱۵۳ مخ. (۲) سراج، ۲۰ مخ

سهمې نه د مالیې او لښکر د لګښت و خوارو په نامه «اتلس زره روپۍ» اخیستې.[1] یا احمدشاه پر (۱۱۸۱هـ) د ډېرې اسماعیل خان د کوچنی سیمې «میاوالې» مالیه له (څلویښتو) جریبو څخه یوه روپۍ وټاکله.[2]

یا د احمدشاه تر مړینې وروسته د سند د «ښکارپور» د سهمې مالیه د کال په (شپږو سوو زرو) روپیو تپکه وه.[3]

سربېره پر دې د احمدشاه د لمسي پر مهال د افغاني ولایتونو کالنی مالیه، لګښت و سپما په لاندې ډول څرګنده ده.[4]

| ولایت نوم | د کالنیو مالیو کچه | کالنی لګښت | د خوندیني سپما |
|---|---|---|---|
| کشمیر (لوی ولایت) | ۲,٤۰۰,۰۰۰ | ۱,۷۰۰,۰۰۰ | ۷۰۰,۰۰۰ |
| پېښور (منځنی ولایت) | ۱,۲۰۰,۰۰۰ | ... | ... |
| ملتان (کوچنی ولایت) »ت) | ... | ... | ۳۰۰,۰۰۰ |
| غازي خان ډېره (همداراز) | ۷۰۰,۰۰۰ | ... | ... |

له پورتنی څرګندونې نه تر احمدشاه وروسته د ځینو افغاني ولایتونو د کالنی ګټې پر او ځارېدو سربېره د یوه ولایت لکه «کشمیر» کالنی لګښت و سپما هم ډاګیزېږي، په دې مانا چې د ولایت لګښت د دولت د ګټې تر دوو برخو اوښتی او د پلازمېنې خوندیني ته تر یوې برخې لږ رسېږي.

کله چې نور افغاني لوی، منځوي او کوچني ولایتونه، لکه: خوراسان، هرات، کندهار، بلخ، بدخشان، کابل (لوی)، بلوچستان، سیستان، بامیان، غور (منځوی)، سند او نور کوچني ولایتونه له مخکښیو ولایتونو: کشمیر، پېښور و ملتان سره پرتله کړو او کالنی مالیه یې انډول وګڼو، د دغه ټکي له منلو سره چې د احمدشاه مهال له مالیو سره یې ژور توپیر نه لاره، دې پایلې ته رسېږو چې د افغاني ولایتونو او پنجاب

(۱) حیات، ۵۲۰ مخ تر احمدشاه مخکې دې سهمې، سیمه یزو مشرانو ته څلور ډوله مالیې ورکولې: له ځمکو څخه جنس یو پرلس، له ځمکو څخه نغدي څه د پاسه یو پر لس، د شیانو د پلورولو له امله په روپۍ کې یوه پیسه او په نکاح کې شپږ روپۍ. تر احمدشاه او ځای ناستیو یې وروسته رنجیت سنګ له بنو نه پر کال (سل زره) او بیا انګریزانو (سل و یوولس زره) روپۍ مالیه ټولوله. همدا راز حیات ۵۰۹ مخ.

(۲) حیات، ٦۱۵ مخ. (۳) مجمل، ۱۵۳ مخ.

(٤) سراج، ٥٦ مخ، محمد حیات پرخپل مهال د انګریزانو له خوا د پېښور او ډېرو ټوله مالیه (دوه میلیونه) کلداري لیکي، ۸۹ مخ.

(گرد هېواد) د توله کالنی مالیه (یودېرش مېلیونه) روپۍ کېدې، په دغه توپیر، لکه بلوڅستان چې د مالیې پر ځای د شپږو زرو سپرو بلوچو سرتېرو کالنی لګښت ورکاوه، یا بلخ و بدخشان چې د اوزبکو خانانو د پر له پسې تاړاکونو او ویجاړونو له امله دومره ړنګ شوي وو چې ان د احمدشاه د لمسي تر مهاله یې هم خپل کالني لګښتونه پوره کولای نه شول او هر کال به د پلازمېنې له خوندیینې څخه یو څه پیسې د نوموړیو ولایتونو د لګښتونو له پاره وراستول کېدې. (۱)

داحمدشاه دولت کالنی ګټې یوازې همدا (۳۱ مېلیونه) روپۍ ګڼلای نه شو، سره له دې چې د دغه شمېر هم دولتي بودیجه بشپړوله؛ لګښتونو ته بس و، او یو څه یې د سپما په توګه خوندیینې ته هم تلو، خو د دولت نورې ګټې د جګړو د ډګرونو ولجې او د ګاونډیو هېوادو د مشرانو او پاچاهانو ډالۍ وې.

که څه هم چې داګټې تاکلې نه وې او کله، کله لاس ته راتلې، خو سره له دې هم درنې او د احمدشاه مهال تر پایه غځېدلې وې، لکه د احمدشاه د پاچاهۍ پرلومړیو (۱۱۶۰) کال هغه خوندیینه چې د کابل و پېښور څو کلنه مالیه او د پنجاب د مشرانو ډالۍ وې او د نادرشاه او د کابل د واکمن توکل خان د استازي «محمد تقي شیرازي» په لاس د کندهار له لارې خوراسان ته وړل کېده، د احمدشاه لاس ته ورغله چې څه د پاسه (شل مېلیونه) روپۍ یا (دوه مېلیونه) اشرفۍ کېدې. په خوراسان کې د نادرشاه د ماندینې ډالۍ چې ګرانبیه ډبرې په ځانګړې توګه «کوه نور» په کې و، هم ستره شتمني ګڼل کېده. هغه خوندیینه چې د پنجاب د نیولو پر کال (۱۱۶۵) «میرمنو» احمدشاه ته وسپارله، د هندي مؤرخیو د وینا پر بنسټ (لس مېلیونه) روپۍ وې، همدا راز پر (۱۱۷۰) کال چې احمدشاه په ډیلي کې د وزیر قمرالدین زوی «نظام الدوله» ته د هندوستان وزارت ورکاوه، هغه شمېر پیسې چې د نوموړي له شتمنی نه د احمدشاه خوندیینې ته وسپارل شوې، (شل مېلیونه) روپۍ یې لیکي. په هندوستان کې د احمدشاه د یوې جګړې د ډګر (پاني پت) ولجه مېلیونونه روپۍ، لوښي، څاروي، وسلې او داسې نور وو، همدا راز د هند د نورو راجاګانو او مشرانو ډالۍ او د جګړو ولجې هم پر پورتنیو څرګندونو ورډېرولای شو.

---

(۱) سراج، ۵٦مخ.

په هر ډول، دومره ویلاي شو چې د احمدشاه خوندیینه د ځای او مهال په پرتله خورا بډایه وه او تر مړینې وروسته یې اورده کلونه د وروستیو له پاره ستره هرسازینه ګڼل کېده.

پر هغه ورځ چې د احمدشاه لمسی «شاه شجاع» وژل کېده د سلطنتي سپما د خوندیینې یو شمېر ګاڼې او ګرانبیه ډبرې ورسره وې، چې سلطان محمد یې بیه د (پنځو میلیونو) روپیو په خوا و شا کې لیکي. دا چې د احمدشاه وروستیو هم خپلې ګټې لرلې، څه اړنګ نه شته، خو سلطنتي خوندیینه چې له غمیو او سرو زرو ډکه وه، هماغه خوندیینه وه چې په خپله احمدشاه ډکه کړې وه، ځکه چې کاله ته یې د احمدشاه غوندې ستري برياوې، درنې ولجې او د پاچاهانو ډالۍ لاس ته ورتلې.

## دولتي لګښت:

د احمدشاه د دولت لګښتونه دا وو:

د سرتېریو او افسرانو تنخا، د وسلې او پوځي یونونو لګښتونه، د هېوادنیو کارکوونکیو، سیمه یزو خانانو، ساداتو او دینپوهانو، تنخاګانې، دلېږدونو او سپرلیو لګښت، د دولتي ودانیو لګښتونه، د دربارو سلطنتي کورنۍ لګښتونه او داسې نور، خو پوځي لګښت د هېواد تر ټولو لګښتونو خورا درون و او لکه څرنګه چې ښکاري د هېواد د ټولې کالنۍ ګټې دوو برخو ته ورنېږدې و، په دې مانا چې:

د احمدشاه اوردو (سل و شل زره) تنه لرل، چې (نوي زره) یې په سپرو او (دېرش زره) یې په پلیو ټولګیو کې وو، نو چې د هر سپاره میاشتنی تنخا (۱۲) روپۍ او جنس و، په کال کې ټوله (دوولس میلیونه او نه سوه او شپېته زره) روپۍ کېدې او هر پلي هم میاشتنی (شپږ) روپۍ او جنس تنخا اخیسته چې ټوله په کال کې (دوو میلیونو او یو سل وشپېتو زرو) روپیو ته رسېده.

همدا راز د اوردو د افسرانو نغده او جنس تنخا چې د جاګیر په توګه له هېواد نه تر لاسه کېده، د وسلې د پېرودلو او وسله تونونو ډکولو او د لېږدونو او داسې نورو کالنی لګښت (درې میلیونه) روپۍ کېدې، په دې توګه د احمدشاه د اوردو ټول کالنی لګښت څه د پاسه (نولس میلیونه) روپۍ وې چې د هېواد د ټولې کالنۍ ګټې په پرتله (۳۱ میلیونه روپۍ) د دولتي پانګې دوې برخې ترې جوړېدې.

په هېواد کې د ودانيو چارې، لکه: بنار، پول، جومات، تم ځای او داسې نور تر ډېره په بنېگارې ډول سر ته رسېدې. د کارکوونکيو تنخاوې، د دربار لګښتونه او داسې نور د دولتي ګټو له هماغو (۱۲ مېليونو) پاتې شويو روپيو څخه ورکول کېدل او چې څه به پاتې کېدل د دولت د سپما خونديني ته سپارل کېدل.

دا مو په پام کې وي چې د لاريونونو د لګښت له نيول شويو هېوادونو، ولجو او د بهرنيو پاچاهانو او د لارې د سرد واکمنو له ډاليو څخه بشپړېده.

د يادولو وړ ده چې د هېوادنيو کارکوونکيو، خانانو او داسې نورو نغدي او جنس تنخاوې د جاګير او د هېواد له دېواني ماليو نه د حوالو او سپارښتليکونو له لارې ورکول کېدې څکه چې خونديينو اوړه ورکولای نه شوه.

تولو لويو دولتي کارکوونکيو ته هم د تنخا پر ځای پاچاه بنېلي کلي او بانډې رسېدلې وې. لکه ابن محمد امين چې د مختار الدوله «شيرمحمد خان» د کليو او بانډو د جاګير يادونه کوي چې د تيمورشاه پر مهال ترې اخيستل شوي و.[۱]

د محمد زيو د پاچاهۍ پر مهال د ابداليانو په توپير د لويو کارکوونکيو تنخا جګه شوه، د بېلګې په توګه شاه شجاع ابدالي خپل ورور شاهزي پيروزالدين ته چې د هرات نايب الحکومه و د هغه ځای له دېواني ماليې نه د کال (درې سوه زره) روپۍ تنخا ټاکلې وه[۲] او خپل زوي شاهزي تيمور ته يې چې د کندهار نايب الحکومه و، د کال (۳۶ زره) روپۍ تنخا ورکوله.[۳]

خو پاچاه دوست محمد خان د کندهار له ماليو نه يوازې د هغه ځای لويو سردارانو ته د کال لاندېنۍ تنخاوې ورکولې:

سردار رحمدل خان ته (پينځه سوه زره) روپۍ، سردار ميرافضل خان ته (دوه سوه زره) روپۍ، خوشدل خان ته (سل واويا زره) روپۍ، غلام محی الدين خان ته (سل و دوولس زره) روپۍ، سردار شير علي خان ته (سل زره) روپۍ، منوردل خان ته (اويا زره) روپۍ او نورو سردارانو ته (دوه سوه او شپږ د برش زره) روپۍ.[٤]

له دې نه بنکاري چې د احمدشاه مهال د چارواکيو تنخا د هغه تر وروستيو ټيټه وه.

---

(۱) مجمل، ۱۵۹مخ (۲) سراج، ۷۶مخ (۳) سلطاني، ۲۶۳مخ. (٤) سراج، ۲۲۰مخ.

# درویشتم څپرکی

## د احمدشاه د چارواکیو رسمي نومونه

افغانانو یو ډول نومونه لرل چې په هندوستان کې یې د خپلې شهنشاهی پر مهال دود کړي وو، لکه: خدای زی، ظفرخان، تفال خان، سربلند خان او په لسګونو نور.

محمد قاسم فرشته څو ځلې دغه افغاني نومونه یاد کړي، په ځانګړې توګه د سلطان علاوالدین د سلطنت د پېښو په ترڅ کې یې د ډکن افغاني پاچاه «حسن کانکوي بهمني» نومونه اخیستي دي.

د احمدشاه پر مهال یو شمېر دغه نومونه د عربي ژبې له یوې ډلې نومونو سره چې له پېړیو راهیسې د ختیځ په اسلامي هېوادو کې کارېدل، یو ځل بیا په افغانستان کې دود شول چې کورنیو او بهرنیو څېرو ته یې ورکړه یوازې د پاچاه واک و. دا نومونه ډېر او په لاندې ډول وو: فرزند خان، جان نثارخان، شاه پسند خان، شاه دوست خان، وفادار خان، کفایت خان، التفات خان، خان خانان، مشرف خان، شاه ولي خان، مخلص الدوله، نظام الدوله، امین الملک او په دې ډول په لسګونو نور.

# څلورویشتم څپرکی

## داحمدشاه ودانی

په دې پوهېږو چې احمدشاه ملت ته د نوي تمدن و پوهې وړیېژندلو ته وزګار نه و. ښایي وویل شي چې د افغانستان پوهه، اَدبیات او لرغوني ملي صنایع چې د مغولو تر تاړاک وروسته ویجاړ او د افغانستان د تیموریانو پرمهال لږ راژوندي شول او بیا د اوزبکو، سپویانو او بابریانو له لاسه د هېواد د سیاسي شنني له امله ګړنګ ته ولوېدل، د احمدشاه پرمهال هم پرهماغه مړ ژواندي بڼه پاتې شول، مانا دا چې دا مهال په افغانستان کې هیڅ ښوونځی، پوهنتون، کتابتون و اکاډیمیک بنسټ جوړ نه شو. همدا راز احمدشاه د خپل سلطنت په ټوله موده کې د کرنې، صنایعو او اقتصاد ودې ته هر اړخیزه پاملرنه ونه کړای شوه ځکه چې هغه له سیاسي او کورني پلوه د یوه ړنګ و ویجاړ هېواد پاچاه شوی و او خپل ټول ژوند یې د همدغو نیمګړتیاوو د سمون په لار کې تېر کړ. په دې توګه، سره له دې چې له احمدشاه نه په دغه لړ کې کومه غوره نښه راپاتې نه ده، خو بیا هم چې کله وزګار شوی لږ و ډېر یې ودانیو او دځینو کورنیو صنایعو ساتنې او دودونې ته لاس غځولی دی.

احمدشاه د نادرشاه په لاس د کندهار د پخواني ښار د ړنګېدو له امله غمجن و او نادر آباد کلا یې« چې پر خیشته ځمکه یوازې له پلازمېنې سره د جګړې له پاره جوړه شوې وه » د افغانستان د پلازمېنې وړ نه ګڼله، ځکه یې پر (۱۱۷٤) سپوږمیز کال د اوسني کندهار ښار بنسټ کېښوو، (نهمه ګنه انځور کتلی شئ) او د لومړي ځل له پاره یې سیده بازارونه جوړ کړل چې پر نېغو کرښو یوه بل ته مخامخ وو.



نمبر ۱۰
جامع شاہی احمد شاہ
در شہر قندہار

احمدشاه د ښاري سیمو تر ټاکلو وروسته د شمالي اړخ په منځ کې« دولتي ارګ » وټاکه چې وروسته یې بنه واړول شوه او اړخونه ته یې د شاهي سر تېریو مېشتځي، توپخانه ، وسله تون، ډیپو ، د باروت جوړونې ځای او شاهي غوجل ودانه کړه . او د سلطنتي دېواله ته مخ یې د « شاه بازار » تر څنګ شاهي جومات جوړ کړ (لسم انځور کتلی شئ) خو په کندهار کې د احمدشاه تر ټولو ښکلې ودانۍ هماغه دي چې « د حضرت محمد ﷺ »د سپېڅلې خرقې او خپل قبر له پاره یې د « شاهي بڼ » په منځ کې جوړې کړې. اوس د بڼ څرک نه لګېږي ، دا هماغه ښکلې ماڼۍ ده چې د یوه اسپانوي ختیځ پوه« هسري هراس » په وینا « یوه نړۍ سپېڅلتیا او برم و پرتم تر ووري ». (یوولسمه ګڼه انځور کتلی شئ)

احمدشاه پر (۱۱۶۶) کال د کابل بې آرو بنسټه ښار ته دیوه دېوال په چاپېرولو پوځي بنه ورکړه خو نن یې کومه غوره نښه پاتې نه ده. د کابل بالاحصار ختیز لوري ته یې د شاه شهید په نامه د « شاه اسحق ختلاني » زیارت پر ۱۱۸۳ کال د خواجه سرا « یاقوت » په مرسته ودان کړ ، همدا راز یې په بلخ کې د پخواني خولم پر ځای اوسنی تاشقرغان جوړ کړ ، دده پر مهال (۱۱۸۴) کال په سند کې د نایب الحکومه « غلام شاه خان » له خوا د « حیدر آباد » نوي ښار بنسټ کېښوول شو. احمدشاه پر (۱۱۷۰) کال د خپلو دوو کارکوونکیو په مرسته په مکه معظمه کې د افغاني حاجیانو له پاره د استوګنې ودانۍ جوړه کړه. کېدای شي چې د هېواد په نورو سېمو کې به هم ودانېزې چارې شوې وي خو د تاریخ له مخونو په دې اړه څه لاس ته نه راځي. احمدشاه د افغانستان د ختیزو ولایتونو ان هندوستان ګڼ شمېر خټګر کندهار ته راوستل او په احمدشاهي ښار کې یې ځانګړې مېنه د « دخټګرو مېنې » په نامه وټاکله ، دا مېنه تر اوسه په همدغه نامه شته او استوګن یې هماغه د احمدشاه مهال د خټګرو کول دی چې پور تنۍ پېښه یې هېره نه ده او اوس هم خټګري کوي. د احمدشاه پر مهال پر ودانیو سربېره چې بشپړه بېلګه یې د هغه خپل زیارت دی ، د افغانستان له نورو ښکلیو او پرمختللیو صنایعو څخه چې د منځنیو پېړیو په لړ کې په زوره راکښونکې بڼه څرګندوو او ورو ، ورو له منځه لاړل ، یو یا دوه یې ژوندي وساتل شول ، لکه موږ وینو چې د احمدشاه پر مهال د لرغوني ښکلې افغاني خاتم کارۍ او لرګین کارۍ په لړ کې د نورو تر څنګ ښایسته کړکۍ هم جوړېدې چې ځینې یې لا تر اوسه د هاغه مهال په جوړو شویو کورونو کې پاتې دي. (۱۲ انځور) او یا د ډول ، ډول لرغونیو افغاني انځور شویو زرینو ټوټو پر ځای چې په ټول ختیځ کې یې لوړ نوم لاره او یو مهال د چنګیز د زوی« اوغدي » د خوښونې له امله د هرات ښار د بیا ودانېدو لامل شوې ، د احمدشاه پر مهال ښکلې وربښیم ګنډنې د « خامک ګنډنې » په نامه ښه پرمختګ کاوه چې تر اوسه کار پرې کېږي.

# پینځه ویشتم څپرکی

## د احمدشاه پرمهال د افغانستان نښان

د احمدشاه پرمهال د افغانستان نښان، پرپاچاهی د هغه د ټاکلو پرلومړۍ ورځ وټاکل شو، په داسې توګه چې د ملي جرګې یوه غړي او د احمدشاه لومړني ټاکونکي د ټولو تر خوښې وروسته د سلطنتي خول پرځای د نېکمرغی په هیله د غنمو وږی داحمدشاه پرخولۍ وتومبه، احمدشاه هم له هماغې شېبې نه دغه سپېڅلې نښه د ځان و دولت له پاره ومنله، دا نښه دافغانستان له اوتاسره هم سمه وه چې د هېواد کرنیز والی څرګندوي.

احمدشاه یوازې د غنمو وږی بس ونه ګاڼه او «توره» یې «چې د افغانستان د ملي او تاریخي مېړانې او زړورتیا نښه یې ګڼله» هم پرې ور ډېره کړه. تر هغې وروسته «غنم وږی او توره» د افغانستان رسمي نښان و، بیا پردغه افغاني نښان یوه بله نښه هم ور ډېره شوه چې «ستوري» ته ورته وه.

د احمدشاه له مهاله تر ننه د افغانستان نښان په ځاز، راز بڼو رارسېدلی، لکه د شاه شجاع پر څینو مېسینو پیسو کله یوه او کله دوې تورې انځور شوې. د محمد زیو پرمهال او د امیرشیرعلی خان پر پېر (۱۲۷۹-۱۲۹۶) دغه توره د زمري په لاس کې وینو.[۱]

---

(۱) کتلی شئ: دشمس النهار ورځپاڼې ګڼې، لکه: د (۱۲۹۰) سپږومیز کال د ذی الحجی (۱۵) او (۲۵) نېټې، لومړی تو ک، لسمه او یوولسمه ګڼه، د (۱۲۹۱) کال د ربیع الاول (٦) نېټه، دویم توک (اوولسمه) ګڼه او د (۱۲۹۲) کال د ربیع الاول (۱۳) دریم توک (څلورمه) ګڼه.

«شمس النهار» رسمي ورځپاڼه وه ځکه یې پر سر مخ د افغانستان دهاغه مهال رسمي ------- >>

د «ضیاء الملت و الدین امیر عبدالرحمن خان» (۱۲۹۸-۱۳۱۹) د مهال پر پیسو او داسي نورو د دریځ پرشاو خوا د غنم وړي لیدل کېږي. ترهغې وروسته تر ننه د دریځ او کله، کله د خولی ګرد چاپېر د غنم وړي له دوو رېونده متقاطع تورو سره «ددې له پاره چې په عمودي تقاطع د پېرنګي صلیب ته ورته نه شي» لیدل کېږي او ځینې مهال د افغانستان پر رسمي پیسو، فرمانونو، بیرغ و خولی له تورې سره توپ و توپک هم شته او دود دي. خو دا چې د احمدشاه مهال افغانستان نښان د غنم وړی، توره او ستوری وو لږ څه څېړنې ته اړتیا لري، ځکه چې زموږ په تاریخونو کې په دې اړه څه نه شته، خو د احمدشاه مهال پیسې په دې اړه ډېره مرسته کوي. سره له دې چې په افغانستان کې د احمدشاه مهال د پیسو ټولګه نه شته خو بیا هم د هغه څو پیسي چې د کندهار ښاروالۍ د موزیم د تاریخي پیسو په کلکسیون کې او ځینې یې له مینه والو اشخاصو سره دي؛ پورتنۍ ټکي زباتوي.

ددغو پیسو یوه چې مېسینه او د وزن و حجم له پلوه د احمدشاه «فلوسونو» ته ورته ده پر یوه مخ یې لواړ غنم وړی دی خو د وړي شا و خوا نورې نښې او د پیسې بل مخ سولېدلی او نه ښکاري[1] په دغه لړ کې یوه بله پیسه چې هغه هم مېسینه ده، پر یوه مخ یې دغه انځور دی: «دوې نېغې او پرتې تورې او د دواړو ترمنځ غنم وړی» پر بل مخ یې

----» نښان انځور شویدی. تر ۱۲۹۱ کال د شمس النهار په مخکښیو ګڼو کې د لومړیو مخونو پر سر د وه څوځنده زمري یو بل ته مخامخ دي چې د هر یوه په لاس کې توره او ښامار یې تر پښو لاندې نیولی دی، خو د (۱۲۹۲) کال په نوموړي ګڼه کې بیا ښارمار نه لیدل کېږي.

شمس النهار لومړنۍ ورځپاڼه ده چې په افغانستان کې خپره شوې او له پورتنیو کښو څخه چې یوازې لومړي او وروستي مخونه لري لاندې سکالو وې لاس ته راغې:

د اخبار په سرپاڼه کې د زمریانو څلور خراوې او د بېلا، بېلو قافیو څلور حمدیه بیتونه لیکل شوي او د سرپاڼې په پای کې یې کالنی بیه (د شاهي څېرې شل روپۍ) او په عربي او انګریزۍ ژبه یې له میاشتې او کال سره د خپرېدو نېټه لیکل شوې ده. همدا راز یې شپږ میاشتنی بیه او د یوې ګڼې بیه هم لیکل شوې ده.

«شمس النهار» د کابل بالاحصار د شمس النهار په چاپخونه کې د ورځپاڼې د مشر میرزا عبدالعلیخان په زیار چاپ و خپرېده.

مخکې ښودل شوې ګڼې یوازې لومړی او وروستی پاڼې لري چې ټول څلور مخه کېږي او دا مخونه د ورځپاڼې د دوه تنې په توګه ګڼې نه لري، په دې توګه پوهېدای نه شو چې هرې ګڼې څو مخونه لرل. د سرپاڼې په شاتني مخ کې چې موږ یې دویم بولو او د ورځپاڼې د وروستی پاڼې پر دواړو مخونو د شمس النهار د اداري، اعلانونه، لکه: بیه، د لېږلو آرونه او داسې نور لیکل شوي دي...

(۱) دا د کندهار استوګن ښاغلی محمد رحیم خان پلوېلزي پیسه ده.

د «ب احمدشاه» ليکنه لوستل کېږي. (۱)

څرګنده ده چې نومـوړې پيســه د کندهار ښـار تر جنوب پـه دوه وويشتمه چې «احمدشاهي» (۱۱۷٤) نومېده، د احمدشاه له خوا ووهل شوه او څلور يې ومونده خو کال يې ښه څرګند نه دی. انګليسي چې د پيسې له يو مخ نه د «ضر» توری چې پرځنده ليکل شوی و د اوږده مهال سره ليدو له امله الوتی او «ب» توری يوازې پاتې شوی، په دې توګه له دغو دواړو تورو څخه د «ضرب» وېي جوړېږي چې ټول «ضرب احمدشاهي» لوستل کېده.

د احمدشاه ځينې مهمې روپۍ لاندېنۍ ليکنې او ښې لري:

۱- پر يوه مخ «فلوس احمدشاهي» ليکنه، پر بل مخ دوې تورې چې نيمخې يوه بله پرې کوي.

۲- پر يوه مخ «فلوس احمدشاهي ۱۱٦۱» ، پر بل مخ دوې نيمخې متقاطع تورې.

۳- پر يوه مخ «فلوس احمدشاه ۱۱۷۷» ، پر بل مخ يوه پرته توره او د هغې د پاسه يو بې مانا انځور.

٤- پر يوه مخ «فلوس احمدشاهي» ، پر بل مخ يوه پرته توره چې له پاسه کرابين ټوپک نيغ پرې راغلی.

٥- پر يوه مخ «فلوس احمدشاهي» ، پر بل مخ يوه پرته توره او د پاس يې يو ستوری. په ځينو کې دغه ستوري د توري د پاسه دي او په ځينو کې دوه شي چې يو يې پاس او بل يې لاندې ښکاري.

٦- پر يوه مخ «فلوس احمدشاهي» ، پر بل مخ يوه پرته دوه ژبې توره او يا يې د پاسه يو ستوری.

خو د احمدشاه سره زرې پيسې اوس په کندهار موزيم کې نه شته، ما يوازې د احمدشاه يوه سپينزرې پيسه ليده چې د افغانستان د هاغه مهال دوه مثقاله او څو چنې درنه روپۍ ده. (۳)

د دې روپۍ پر يوه مخ دغه نابشپړه ليکنه لوستل کېږي: « ... از قادر بيچون به احمدشاه... زن بر سيم و زر... ست ما... »

بل مخ يې: « ... ميمنت مانوس سنه ۸ جلوس ... ب... »

د افغاني تاريخونو د څرګندونې له مخې ښايي د پيسې آر ليکنه داسې وي. (٤)

---

(۱) دا د کندهار د چلغور استوګن ښاغلي محمد رسول خان بابري پيسه ده.

(۲) دا د کندهار ښاروالۍ په موزيم کې داحمدشاه په نامه د تاريخي پيسو د ټولګې اړوند پيسې دي.

(۳) دا د اميرعبدالرحمن خان د نوميالي کوتوال «نايب ميرسلطان خان» د کورنۍ پيسه ده.

(٤) لګه «سراج التواريخ» لومړی ټوک، د احمدشاه سرليک.

«حکم شد از قادر بیچون به احمدشاه- سکه زن برسیم و زر از پشت ماهی تا بماه- سن ۸ جلوس میمنت مانوس ضرب...»

احمدشاه په هرات، کندهار، مشهد، اټک، انواله (روهیله کنډ ۷۳-۱۱۷٤) بریلي (پر هماغه کال روهیله کنډ)، بهکر (اندوس ۱۱٦۸-۱۱۷۷)، پېښور، ټټه (سند)، غازي خان ډېرې (۱۱۷۰)، ډېرو، سرهند (دد غه ځای د پیسو وروستی کال ۱۱۷٦ دی)، ډیلي (پر دویم ځل نیولو)، کشمیر (سره زرې پیسه ۱۱٦۷)، لاهور (سره زرې اوسپینزرې ۱۱٦۱)، مراد آباد (روهیله کنډ)، ملتان (۱۱٦٥)، نجیب آباد واگره، (د احمدشاه په نامه د نجیب الدوله له خوا پر ۱۱۸۰ کال سکه وهل شوې) ښارو کې پیسې چاپ کړې چې بېلګې یې دا دي: په اټک کې سره زرې روپی، پر یوه مخ یې «حکم شد از قادر بیچون به احمدشاه - سکه زن بر سیم و زر از پشت ماهي تا بماه»

پر بل مخ یې «جلوس میمنت مانوس سنه ۱٥ ضرب اتک». سپینزرې روپۍ هم پر همدغه ډول چاپ شوې ده. په ملتان کې چاپ شوې مسي روپۍ چې پر یوه مخ یې «احمدشاه پادشاه دراني فلوس سنه ۱۱۷۰» او پر بل مخ یې «ضرب ملتان جلوس مبارک ۱۰» لیکل شوي،[۱]

خو په دې نه پوهېږو چې د احمدشاه مهال افغانستان ملي رنګ څه و او په پوځي ربیو کې په کومه بڼه کارېده؟ یوازې همدومره څرګنده ده چې د احمدشاه تر لړۍ وروسته د محمد زیو پر لومړي مهال له ۱۲٥۹ تر ۱۲۸٥ پورې د افغانستان ربیو (بیرغونو) ټاکلی رنګ نه لاره او تر ډېره سره او شنه رنګونه دود وو، خو له ۱۲۸٥ کال راوروسته په پوځي درې سریو سرو او شنو بیرغو کې په سپین رنګ، سپېڅلې کلمه، قرآنی آیتونه د راشده خلفاوو (څلورو یارانو) له نومونو سره لیکل کېدل. کېداي شي ووایو چې دغه جوړښت ورنګونو د احمدشاه لړۍ د پوځي بیرغونو او رنګ سره ژور توپیر نه لاره، همدا رنګونه وو چې له (۱۱۹۷) کال راوروسته ورو، ورور له «دریغ» سره تورو بنفش رنګونه او په پوځي بیرغونو کې «لمر، ستوري او توپ» پرې ورډېر شول، لکه هماغسې چې د افغانستان د بهرنی سیاسي خپلواکۍ د له منځه تګ سره، ملي رنګ «تور» شوی و. ددې سکالو هر اړخیزه څرګندونه له هغې د پیرونو او اوښتو سره بېله څېړنه غواړي، دلته بنا یې همدومره ووایو چې د خپلواکۍ تر ګټلو وروسته د افغانستان ملي رنګ پر (۱۳٤٦) سپوږمیز کال «تور، سوروشین» وټاکل شو، شاهي رنګ هم «سور» دی چې تر (۱۳۱۹) لمریز کال وروروسته د افغانستان د سلطنت مقام ته ځانګړی شوی دی.

---

(۱) «رساله مسکوکات افغانستان در عصر اسلام» د نوی مؤرخ او د تاریخ ځانګې او کابل موزیم مشر بناغلي احمدعلیخان کهزاد، لیکنه، کابل ۱۳۱۹ کال.

# څلـورمه برخه

## د احمدشاه جګړه یز یونونه

وروسته تر هغې چې احمدشاه د افغانستان پر پلاز کېناست، لومړنی کار یې د دولت و پوځي اوردو جـوړول و چې سـمدلاسـه دا دواړه اسـان ګـڼل کـېدل، ځکه چې احمدشاه د دولتي جوړښت له پاره رښتیني ملګري لرل چې څو کاله له ده سره د نادرشاه ترڅنګ راټول و آزمېیل شوي وو، نو له دوی څخه یو «بګي خان بامیزی» یې د «شاه ولي خان - اشرف الوزرا» په نامه د هېواد لومړی وزیر وټاکه او بل «جهان خان پوپلزی» یې د «مـیربزن- سپـه سـالار - خـان خـانان» په نـامـه دفـاع وزیر کـړ. د پلازینې پوځي کوماندان د «امیرلښکر» په نامه «شاه پسند خان اسحق زی» وټاکل شو، همدا راز نور نومیالي او پېژندل شوي سړي د ښلا، ښلو څانګو چارواکي او پوځي مشران شول.

اوردو هم په هوسایني سره جوړ شو، ځکه چې احمدشاه له توپونو او نورو لوښیو سره شپاړس زره وسله وال افغاني سرتېري لرل. دا کوچنی اوردو ستر ځواک او هغه زلمي په کې وو چې د ژوندانه څـو کلونه یې د هندوستـان، بخـارا، خوارزم، ایروان و داغستـان پرجګړه یزو ډګرونو تېر کړي او هیڅکله یې ماتې لیدلې نه وه.

احمـدشاه پوهېده چې دغـه جنګیـالی اوردو د یوه هېـواد د نیولـو له پاره بس دی، ځکه یې لـه خوراسانه د راتلو لـه لومړۍ ورځې شننې ته پرې نه ښـوو. احمدشاه چې د افغانستان پاچاه شو، دغه سرتېري د زړه له کومي خدمت ته چمتو شول ځکه چې دوی تر پخواني او زړور افسر احمدشاه ښه پاچا نه لیده. د نومیالي شاعر له وینا سره سم[1]

---

(۱) زد و چیز گیرند مر مملکت را یکی ارغـــوانی یکی زعـــفرانی
یکی زر نام ملک برنبشــــه دگر آهن آب داده یمانی «دقیقي بلخي»

احمدشاه د هیوادنیو چارو او هیوادنیونې له پاره یو ارخ لاره چې هغه څواک دی، خو دغه کار دویم ارخ «پانګه» نیمګړی او موند لوپې دېره هڅه غوښتله. دا مهال بخت له احمدشاه سره مرسته وکړه او په کندهار کې د کابل و پېښور ولایتونو د ځو کلنې مالیې او د پنجاب مشرانو د ډالیو څخه د پاسه د وو میلیونو سرو زرو «همیانی چې نادر ته ورل کېده؛ لاس ته ورغله، څرګنده ده چې احمدشاه د دې پانګې ستره برخه د هیواد د سرتېرو د لګښتونو په چارو کې ولګوله او د اوره و د پراختیا هڅې یې پیل کړې.

افغاني مشرانو هم اوردو ته د سرتېرو د لېږلو او د نیم پوځي دلو د جوړولو په اره خوزا زیار وګالله، له هغې امله د هندي مؤرخینو له ویناسره سم، احمدشاه چې له «ستلجه» تېرېده تر شا یې د پرش زریز اوردو روان و.

په دې توګه همدا چې احمدشاه له لومړنیو ملکي او پوځي چارو څخه وزګار شو، بې ډیله یې د ختیځ له لوري د افغانستان د ځمکو پر بیانیولو پیل وکړ.

# شپږویشتم څپرکی

## لومړی یون (۱۱۶۱) س کال

### د کابل، پېښور، سند و ملتان ولايتونو یوځای کول، د لاهور جګړه، له هندوستان دولت سره د «سرهند» جګړه

ځيني تاريخ ليکونکي د احمدشاه د جګړه يزو يونونو د شمېر ونېټو په ټاکنه کې تېروتي، لکه فيض محمد خان چې د احمدشاه د لومړي يانه او له پېښوره کندهار ته د هغه د بېرته راستنېدو کال (۱۱۶۰) «د پاچاهي لومړی کال» ګڼي [1] خو موږ ته څرګنده ده چې نادر شاه د (۱۱۶۰) کال پر نيمايي د جمادي الاخر په مياشت کې ووژل شو او احمدشاه تردې نېټې څلور مياشتې وروسته د «شوال» پر مياشت د افغانستان پاچاه شو، همدا راز له خوراسانه کندهار ته د احمدشاه راتګ، د مشرانو راټولېدو، د جرګې جوړېدو او د پاچاه ټاکنې همدومره موده غوښته، نو څرګنده شوه چې د (۱۱۶۰) کال پای ته دوې مياشتې پاتې وې چې احمدشاه «پاچاه» شو. په دوو مياشتو کې د يوه منځني حکومت جوړول، د کندهار د چارو او سرتېرو سمون او تر پېښوره تګ و راتګ خورا ناشوني ښکاري.

احمدشاه پر (۱۱۶۱) کال خو ځښتونه پيل کړل او دا چې هو د يې کړي و چې د

(۱) سراج، ۱۱مخ.

هیواد له ختیز لوري ځخه یې راونیسي، نو سپاه سالار «سردار جانخان» یې د مخکښ په توګه د کابل کرښې ته واستاوه؛ په کندهار کې یې د سلطنت وکالت خپل وراره «لقمان خان» ته وسپاره او دی له ستر لښکر، درنو توپونو او لوژستیکي زیرمو سره د مخکښي لښکر تر شا و خوځېد.

«سردار جانخان» چې لوری یې کابل و په غزني کې له جګړې سره مخامخ شو، ځکه چې د کابل و پېښور نایب الحکومه «ناصر خان» چې د هندوستان دربار پخواني کارکوونکی او د نادر له خوا غاړې ایښوولو ته اړ شوی و، دخپل بادار تر مړینې وروسته یې خو ځلې د حکومت چغه پورته کړې وه او غوښتل یې چې تر دغه نامه لاندې ځان له اټکه تر غزني د خپلواکۍ ور وښیي.

همدا چې «ناصر» په کندهار کې داحمدشاه له پرېکړې خبر شو، په کابل و غزني کې یې لښکر «تیارسئ» کړ، خو په دې وپوهېد چې کابلیان احمدشاه پلوي دي، نو له ایماقو او هزاره ګانو ځخه یې د پوځي ټولګیو پر جوړولو پیل وکړ، خو تر دې وروسته ناصر په غزني کې د احمدشاه له مخکښ سره د ټکر په ترڅ کې مات او ښار ونیول شو.
ناصر په خپله د احمدشاه د مخکښ لښکر د مخنیوي له پاره په کابل کې د لښکرې چمتووالي هڅې پیل کړې خو ژر بې جوکې او تېښتې ته اړ شو، ځکه چې ایماق و هزاره لښکرې چمتو نه شوې چې د خپل هیوادوال پاچا «احمدشاه» پر وړاندې وجنګیږي.
همدا چې ناصر پېښور ته ورسېد، بیا یې د سرتېریو راغونډول پیل کړل، خو دلته هم د کابلیانو ته له ورته غوښتنې سره مخامخ شو او وایې وربدل چې په اشنغر کې دده پخوانی ملګری «افغان عبدالصمد خان مومنزی» د احمدشاه د اوردو د هرکلي پرچارو لګیا دی، له همدغه امله یې په خورا پرغز د هغه پر سیمه یرغل وروړ، خو عبدالصمد مخکې تر دې «جلال آباد» ته روان شوی و.

ناصر لا دمه کړې نه وه چې داحمدشاه سپه سالار پر پېښور ورننووت، دی اړ شو چې خپله کډه پربېږدي؛ یوازې له اټکه واوړي او د راولپنډۍ «چهچهه» ته پر شا شي، مېرمن یې چې د زبردست خان لور او د علیمردانخان لمسۍ وه په درناوي یرغمل شوه. سپاه سالار د احمدشاه له سپارښتنې سره سم ناصر وڅاره. ناصر د دې چټکې څارنې له امله لوری لودن ورک کړ او لاهور ته لاړ، هلته یې د هند د شهنشاه د وګړي په توګه ځان د مړه

نادرشاه پرځای وروسپاره، دده خوځښت د احمدشاه پروړاندې د پنجاب نایب الحکومه ټینګښت ته وپاراوه. سپاه سالار له اټکه اخوا د احمدشاه نوې سپارښتنې ته تم و چې احمدشاه د غزني، کابل و جلال آباد د چارو تر سمون وروسته پېښور ته راننووت، ده سمدلاسه پېښور لويه اډه کړه: افغاني مشران يې راټول او سره يو کړل او يوسفزي، خټک او نور سرداران يې په پوځي افسرانو کې ونيول. دا مهال احمدشاه د يووالي د لا ټينګښت له پاره د يوسفزيو لويه ځانګه «لردراني» وبلل.

افغاني مشرانو په نيم پوځي چارو کې له احمدشاه سره ډېرې مرستې وکړې او زيار يې وګاله. احمدشاه له پېښوره سهيل خواته د ډېرو او سند د نيولو له پاره يو لښکر واستاوه، وګړيو ومانه او د سند ښې کڅونه لاس ته راغلل، خو احمدشاه په خپله د اټک په سيمه کې چې پول تړلی و له سينده پوريوت؛ چټک له جهلمه تېر شو او د لاهور لوری يې ونيو. دا مهال د سپاه سالار مخکښې لښکر په لوی ځواک کې ګډ شوی و او د احمدشاه اوردو د يوه لوي لښکر په توګه پرمخ روان و، له هغې خوا د هندوستان د لومړي وزير اعتماد الدوله قمرالدين خان خوريه، د ذکريا خان زوی «شهنواز خان» چې د پنجاب نايب الحکومه او پوځي کوماندان و، له لاهور ښاره ووت او د «چناب» ترڅنګ يې لښکر تم کړ. د احمدشاه اوردو د چناب او بودې خواته له رسېدو سره سم په دربدو اړ شو، ځکه چې سيند مست و او لار يې نه ورکوله، ځو ورځې دواړو اوردو ګانو له ورايه يوه بل ته کتل، خو خبره داسې پاتې نه شوه او د يوې شپې پرسهار چې هندي پوځيان لا ويښ شوي نه وو، احمدشاه د شاهي رسالې له کنډکونو سره چې څه د پاسه اته زره سپاره وو، له خپلې چاونۍ نه ورک او د شهنواز له لښکر نه څو ميله پورته له چناب نه تېرشو او سېده يې مخ پر لاهور غورځنګ وکړ، ددغه ناڅاپي بريد له اورېدو سره سم، د شهنواز سپينې وتښتېدې او بې جګړې ډېلي ته وتښتېد؛ اوردو يې د افغاني ځواکونو تر يرغل لاندې راغی او پايله يې د څو ګېنټو په ترڅ کې د هند د اوردو په ماته او د احمدشاه په برې پای ته ورسېده.

احمدشاه لاهور ته ورننوت او د پنجاب د چارو پرسمون بوخت و چې د پنجاب لوري ته د هند دربار له لښکري خوځښته خبر شو. د پنجاب تر نيولو وروسته هندوستان د احمدشاه په پام کې نه و او پرېکړه يې دا وه چې بېرته افغانستان ته راستون شي، خود

پنجاب د ساتنې له پاره اړ شو چې هندوستان دولت پر خپل ځای کېنوي، ځکه د جګړې له پاره له لاهوره ووت.

دامهال «محمدشاه» د «ابوالفتح ناصرالدين محمد شاه خجسته اختر پادشاه غازي شاهجهان» په بلنامه د هندوستان شاهنشاه و چې له دېرشو کلو راهیسې پر واک ګدۍ ناست او نړۍ یې د مزو چړچو د فلسفې په سترګو لیده.

محمدشاه د نادرشاه د پښتې د بیا منګنه راتګ له دارده اخل د خپل ځای ناستي «شاهزي احمدشاه» تر لاس لاندې د افغان احمدشاه مخ ته ځه د پاسه سیل زریز اوردو راولېږه. ددغه اتوره ولوی مشران وواکچاري داوو: د هندوستان «وزیر لعظم وزیر الممالک اعتماد الدوله قمرالدين خان» د اودې حکمران او د هند توپونو کوماندان «نواب ابوالمنصور صفدر جنګ» د راجپوت مهاراج «ابسري سنګ» د سرهند مشر «جمال الدين خان تالپوری»، د پتیالې کوماندان «سنګ جیت»، د ځاي ناستي ورور «صلابت خان» او داسې نور.

هندي اوردو لوژستیکي زېرمې او د لویو افسرانو کډې په سرهند کلا کې پرېښوې او په خپله د «ستلج» پر کڅ د «ماچي واره» د لارې مخې ته افغاني اوردو ته تم شو.

له دې خوا افغان احمدشاه له دېرشو زرو پوځي او نیم پوځي سرتېریو سره خوځېده، هندي کوماندان چې دده راتګ یې د ماچي واره پر لار څاره، واورېدل چې احمدشاه له «لودهیانه» نه پربله لار له ستلجه تېر او مخامخ سرهند ته کوز شوي او ټولې هندي زېرمې یې نیولې دي. دا ناڅاپي غږ چې د شا له خوا اورېدل کېده، هندي پوځي مشران یې ولړزول او پر راغلې لار بېرته تګ ته اړ شول. افغان احمدشاه هم مخې ته ورودانګل او پر داسې مهال چې د داړو ډلو لوري سرچپه شوي وو، له سرهند نه څو میله لرې «ماليپور» سیمه د جګړې ډګر شو. که دامهال د یلې بله ډله رالېږلې واي، افغان اوردو کلابندېده، خو داسې و نه شول او د هند ټولې هیلې د ځای ناستي شاهزي پر اوردو وېورې تړلې وې.

د جګړې په سیمه کې د ښمنو خواوو لښکرې جګړه یز خوځښتونه پیل او تر دوولسو ورځو پورې د توپونو پر وررولو لګیا وې، ددې مودې په ترڅ کې افغان احمدشاه وکړای شول چې د سپرو تولګیو په مرستــه د هندي اوردو اړیک کرښې له هرې خوانه غوڅې

کړي. په پای کې پر دیارلسمه یا اووه لسمه ورځ افغان احمدشاه د دښمن پر مورچلو د یرغل پرېکړه وکړه، خو هندیانو مهال ورنه کړ او د مخنیوي له پاره یې د جګړې ډګرته راووتل، د هندي اوردو ښي اړخ د توپونو د کوماندان صفدرجنګ نواب ابوالمنصور خان او کیڼ اړخ د وزیر الممالک قمرالدین خان د زوی تر لاس لاندې و، ځای ناستی له خپل مشر وزور صلابت خان او د اوردو لـه ستري برخې سره پر منځ ودرېد. د هندو افسرانو ټولګیو د اردو په پای کې د شاتنی پیاوړتیا له پاره ځای ونیو او هندي درانه توپونه هم ځای پر ځای شول.

د افغان احمدشاه د اوردو ښي لاس ته سپه سالار جان داد خان او کیڼ لاس ته یې امیرلښکر شاه پسند خان پرجګړه بوخت وو، احمدشاه یې ترمنځ ولاړ و او «زنبورک» نومي سپک توپونه یې «چې اووسوو زنبور لرونکیو اوښانو ته رسېدل» پر لومړیو کرښو ځای پر ځای کړل، درانو توپونه چې اووه مخکښني توپونه وو د ډګر پر یوه څنډه یې لوړ ځای ونیو او په دې توګه جګړه پیل شوه.

دوې ګېنټې لا تېرې نه وې چې د افغاني ښي اړخ کوماندان د هند پر ځواکونو د برید امر ورکړ او «میرمنو» کلک ټینګار کاوه خو د افغاني جنګیالیو د چټک تګ له امله میمنو پر شا شو او پر ځای یې د راجپوت «مهاراج ایسرای سنګ» له خپلو سرتېریو سره چې د خپل دود له مخې یې کالي په زاپراني رنګ لړلي او ملنې یې تر ملا تړلې وې (دغو ژیړو کالیو ته «ګیسریه مانه» وایي او مانا یې بری یا مرګ دی) د افغاني کوماندان د برید د مخنیوي له پاره راوړاندې شو، خو افغاني سرتېریو د کلک ګوزار په ورکولو سره وځاپه. راجپوتیان منډې ته اړ او د میرمنو د مورچلو تر منځه وتښتېدل او ځینې یې ځای ناستي شاهزې ته ورغلل. افغاني ځواکونو ماتې خوړلي د مورچلو ترمنځه پسې واخیستل او هماغلته د وژنې او د جګړه یزو لوښیو د نیونې پېښې منځه راغلې. له بده مرغه د «بان» په نامه د هوايي اورنیو مرمیو ډ ک ګاډی د اور اخیستو له امله وچاود؛ د بان ټو لوګاډیو اور واخیست. یو شمیر بریالي افغاني جنګیالي ټپیان او وژل شول او ښی کرښې شاتګ ته اړ شوې، خو پر ځای یې د افغاني اوردو لویې برخې د ځای ناستي د ځواکونو په منځ کې لار پرانیسته او د هند وزیر الممالک قمرالدین خان چې په کېږدۍ کې پرلمانځه ولاړ و همدا مهال د افغاني توپونو د پرله پسې ډزو له امله ووژل شو، خو د

نواب صفدرجنگ(۱)

د شپې تیاره د اوربند او دافغاني ځواکونو د شاتګ لامل شوه، وروسې هندي ځای ناستي د هغه واک له مخې چې له خپل پاچاه پلار څخه یې لاره، ددې له ډاره چې که مات شي نو د ډیلي پلاز به د افغان احمدشاه لاس ته ورشي، د سولې غوښتنه وکړه، د افغان

(۱) میرزا مقیم ابومنصور صفدرجنګ د برهان الملک سید سعادت خان خوراساني خوریه او زوم او په اوده ولایت کې د هغه استازی و. برهان الملک چې زوی یې نه لاره د ابوالمنصور روزنه یې ونیوه، تر هغې چې نایب الحکومه او د برهان الملک استازی شو. د ماما تر مړینې وروسته د هندي محمدشاه پرمهال د پلازمېنې د توپونو کوماندان او دبرهان الملک ځای ناستی شو. د هندي احمدشاه پرمهال د عظمې صدارت څوکۍ ته ورسېد، همدا چې له ورستي رتبې ته لرې شو له پاچاه سره وران او د جټانو د مشر سورج مل په مرسته یې د نوموړي پاچاه پر وړاندې د جګړې هوډ ونیو، دده پر نوي صدراعظم د وزیر الممالک قمرالدین خان زوی نظام الدوله او د ډیلي د نوي پوځي مشر نظام الملک اصف جاه زوی پیروز جنګ غازي الدین د افغان نجیب الدوله او روهیلیانو په مرسته له ابو منصور سره جګړې وکړې او په پای کې یې د خپل حکومت ځای لکنهو ته په ستنېدو اړ ویست او هلته د شکاکلو په ناروغۍ مړ شو. ابومنصور پوه زړور و غښتلی سړی و خو دوې تېروتنې ترې وشوې چې دواړو د هند اسلامي دولت ته تاوان ورساوه:

لومړۍ. د خپل پاچاه پر وړاندې یې له جټانو نه مرسته وغوښته او هغوی یې د دولت لوټلو ته زړور کړل.

دویمه: د افغاني بنګښو او روهیلیانو د شخړې په منځ کې یې یې ځایه لاس وواهه او د محمد خان بنګښ د زوي قایم جنګ تر وژل کېدو وروسته یې د قایم جنګ کهول ادله اباد ته بوت او ویې واژه او د هغوی د واکمنۍ سیمه «فرخ آباد» یې په خپله ونیو. خو کله چې د قایم جنګ زوی احمدخان بنګښ ماتې ورکړه، ملهارا او مرهټیان یې د شپږو میلیونو روپیو بډې په ورکړه مرستې ته راوبلل. احمدخان یې بیرته مات او د هغه نیمه شتمني یې مرهټیانو ته وبښله او له آره یې د هندوستان پر سلطنت باندې د هغوی د یرغل ور پرانیست.

د ابومنصور ماما برهان الملک سید سعادت خان له بېخه خوراساني او نوی هند ته لاړ و. په پیل کې د سید سربلند خان مبارز الملک چوپړ و، وروسته د ورتیا په ښودلو د ډیلي د سپاه سالار سیدحسین په مرسته د هند د شهنشاه فرخ سیر د کارکونکیو په ډله کې راغی او بیا د هندون بیانه پوځي مشر وټاکل شو. د هندي محمد شاه پرمهال یې وده وکړه؛ پر (۱۱۰۱) کال یې د برهان الملک بلنوم وګاټه او د اکبر اباد نایب الحکومه شو. بیا د اوده نایب الحکومه توب هم ورته ورسېد. «برهان الملک» پوه او جنګیالی سړی و؛ مرهټیان یې تارومار کړل؛ له خوراساني نادرشاه سره د جګړې په ترخ کې ډیلي ته نږدې پرغمل او بېرته خوشې شو او څو ورځې وروسته د چنګابښ په ناروغۍ مړ شو. نوموړي د ژوند تر پایه د خپل پخواني خاوخوږي سربلند خان درناوی له لاسه ورنه کړ، خو سربلند خان چې د برهان الملک، نظام الملک اصف جاه، اعتماد الدوله قمرالدین خان و خواجه عاصم صمصام الدوله په څېر د هندوستان د هاغه مهال له نومیالیو څخه دی هم له آره خراسانی او د نوي راغلي سید محمد افضل زوی او نوم یې میرزا محمد رفیع دی، پلار یې د اورنګزېب پرمهال هند ته راغلی او ترکوچنی دندې وروسته مړ شو، زوی یې د بهادر شاه د زوی شاهزي عظیم الشان د دېوان د کارکونکیو له ډلې څخه شو او هماغه مهال یې د سربلند بلنوم وګاټه. د فرخ سیر پرمهال داله آباد، د پټنې د عظیم اباد، اودې او کابل نایب الحکومتونه یو پر بل پسې ورکړ شول« په کابل کې یې زوی خانزادخان استازی و». د محمد شاه پرمهال د ګوجرات او بیا د ادله آباد نایب الحکومه شو، خو په خپله د نادر شاه خوراساني تر راتګه د ډیلي په دربار کې مېشت و. هند ته د نادر تر راتګ وروسته، سربلند خان له نړۍ نه لاس واخیست او پر ۱۱۵۰ کال یې سترګې ترې پټې کړې. سربلند خان بشپړ، پوځي، هڅاند، پوه او نوښتګر سړی و.

احمدشاه هم دا وړاندیځ خوښ شو ، ځکه چې له کندهاره یې خبر اخیستی و چې ځینو خپل چاریو د هغه له ورارهٔ «لقمان خان» نه کړی، چاپېره کړې او غواړي چې کړکیچ رامنځته کړي، له همدې امله یې سمدلاسه د هندي شاهزي د سولې توکي واخیستل او ویې منله چې د هند د وزیر الممالک زوی «میرمنو» دې د پنجاب نایب الحکومه وي.

په دې توګه دوې دښمنې خواوې سره بېلې شوې. هندیانو بېره کوله چې ژر دهلي ته ورسېږي ،ځکه چې محمد شاه مړ شوي او خول و پلاز زلمي ځای ناستي ته سترګې پر لار و.

له سرهند نه د احمدشاه د راتګ پرمهال د ملتان ګورګاني واکمن«زاهد خان ابدالي» له خپل زوی شجاع خان سره د ملي احساس له مخې په لار کې د احمدشاه مخې ته راغی او اس، اوښ او نورې ډالۍ یې له مننې او درناوي سره وړاندې کړې، احمدشاه هم د افغاني دولت له خوا بېرته د ملتان پرحکومت پرېښوو چې وروسته یې زوي شجاع د احمدشاه له خوا په ملتان کې د خپل پلار پر ځای وټاکل شو.[1]

احمدشاه له پنجابه پېښور ته راغی او د کابل له لارې کندهار ته لاړ، خو لقمان خان په کندهار کې د احمدشاه د بېرته راتګ له اورېدو وروسته، د خپلو لانجه مارو ملګریو له خوا یوازې پاتې شو؛ په ناچارۍ یې مخور راوړاندې کړل او پښېماني یې وښوده، احمدشاه دی وبابښه او بندي یې کړ، خو نوموړی ډېر ژر په زندان کې مړ شو.[2]

---

(۱) کتلی شئ: د «رنجیت ظفرنامه» د دیوان امر نات لیکنه، د لاهور چاپ، ۱۹۲۸ کال، ۱۱۲ مخ.

(۲) مجمل، ۱۱۲ مخ. ابوالحسن د خپل کتاب په بل ځای کې د لقمان خان زامن یادوي چې په ارګ کې دننه یې له تیمور شاه او د هغه له ورونو سره یو ځای دوړی خوړه، ۱۵۲ مخ.

# اووه ویشتم څپرکی

## دویم یون (۱۱۶۲) کال

### د سیالکوټ، اورنګ آباد، ګوجرات و سپرسرور نیول

احمدشاه بیا پر (۱۱۶۲) کال د کابل و پېښور له لارې مخ پر پنجاب و خوځېد، همدا چې «شاهدرې» ته ورننوتې شو، معین الملک میرمنو په ښکاره د مخنیوي په لټه کې شو، خو په زړه کې یې د سولې لار لټوله، په پای کې یې وکړای شول چې د اشرف الوزرا شاه ولیخان په منځګړتیا خپل درناوی احمدشاه ته وړاندې کړي.

میرمنو په خپل دغه وړاندیز کې ومنله چې د سیالکوټ، اورنګ آباد، ګوجرات و سپرسرور څلورګوني سهمې د افغانستان اړوند وګني؛ کالنی مالیه یې د افغانستان دولت ته ورکړي او سمدلاسه یې هم د نوموړیو سیمو مالیه له ځینو والیو سره احمدشاه ته ولېږله.

احمدشاه چې لا یې د پاچاهي دوه کاله تېر نه وو او افغانستان یې د کورنیو چارو له پلوه د سمون ور ګاڼه، د میرمنو وړاندیځ یې ومانه او پېښور ته راستون شو. ۱۱۶۲ کال لا پای نه و چې احمدشاه کندهار ته راغی خو له یوې نوې پېښې سره مخ شو چې د ده ژوند یې ګواښه. دا لانجه د ده د وژلو او سلطنت ړنګولو سیاسي لوبه وه. ددې لانجې مارې ډلې مشر هماغه پېژندل شوی افغان سردار نورمحمد خان غلزی «میر افغان» و چې له شپاړسو زرو سرتېرو سره د خوراساني نادرشاه ملګری و. نوموړي د نادرشاه ترمړینې

وروسته دځان له پاره د افغانستان د پاچاهی خوب لیده، خو دا چې د «شیرسرخ» په جرګه کې د تاو تریخوالي او لویی له کبله د دغه ستر ځای له نیولو بې برخې شو، په دې توګه یې خوب د خپل پاچاه احمدشاه پر وړاندې «چې یو مهال د ده تر لاس لاندې افسر و» پر غچ و پر غز واوښت، ځکه یې تګی ته لاس واچاوه او د احمدشاه د دولت ځو تنه ناخوښې یې «چې د دوی غوندې په هر دولت کې وي» د ځان پر خوا راټول کړل.

په دوی کې نومیالي سړي کدو خان، محمد خان پوپلزی او د توپونو کوماندان عثمان خان وو.

احمدشاه د دې ګواښنا کې پېښې تر برسېرولو وروسته «دا چې تېر کال یې د لقمان خان پېښه په سره سینه زغملې وه» دا ځل د دښمنو له زړور تیا څخه اندېښمن شو او د دې له پاره چې نورې پوځې چارې یې هم په پام کې وي د پلازمېنې د ډاډ منبدو له امله یې هغوی ووژل او همدا د ده پر وړاندې د ده د پاچاهی د پېر وروستی بلوا وه.

# اته ویشتم څپرکی

## دریېیم یون (۱۱٦۳) کال

### د هرات نیول، شمال وسهیل ته لښکر لېږنې او د بلخ، بدخشان و بلوچستان لاسته راوړل

احمدشاه د پنجاب تر دویم یانه وروسته، څه موده د افغانستان له ختیزو سیمو څخه د سند تر سیند ه پورې د امن شو؛ خپل پام یې لویدیځ لورې ته راوګرځاوه او تر هرڅه لومړی یې هرات تر کار لاندې ونیو. دامهال د هرات حکومت د توپچي باشي امیرخان و بهبود خان په ولکه کې و. په مشهد کې هم د نادرشاه لمسی شاهرخ له (۱۱٦۱) کال را پر دېخوا د نادر د ځای ناستي په توګه منل شوی و، خو پر (۱۱٦۳) کال د هغه ځای د ځو مشرانو د موخو له امله، شاهرخ ځو ورځې بندي او بیا ړوند کړای شو او سید محمد چې د امام رضا زیارت متولي و د سلیمان شاه په نامه، ده پر ځای کېناست. دغه سرې د هرات مشر احمدشاه ته راوپاراوه. امیرخان د احمدشاه له اړوند والي څخه سرغړاوه او همدا چې له کندهاره یې هرات ته د احمدشاه د خوځېدو واورېدل، ټینګار یې پیل کړ. دا مهال احمدشاه له (۲۵) زرو سپرو او پلیو سرتېریو او توپونو سره د ګرشک، فراه او سبزوار لار ونیوه. کله چې احمدشاه هرات ښار ته ورنېژدې شو، ویې لیدل چې امیرخان پر ساتنه بوخت او د پرګنو د غوښتنې پروا نه لري، ځکه یې تر (۱٤) ورځو تم وروسته پر ښار د یرغل لار ښوونه وکړه، د ده سرتېري د شګو له کڅوړو سره پر مخ لاړل؛ کنده یې ډکه کړه؛

په بې ساري زړورتيا د توپونو د ډزو له سېمې نه د ډېرې مرګ ژوبلې په زغلمو تېر او برجونو او د بولونو ته يې د ختلو له پاره زينې ودرولې. ښاريانو هم د احمدشاه د سرتېريو مرستې ته وروړاندې ګل؛ دايرو برج يې ور وسپاره او په ښار کې يې د پارسي جګړه مارو په وژنه لاس پورې کړ. په دې توګه احمدشاه ښار ته ورننوت؛ امير خان يې وواژه او درويش علي خان هزاره يې د هرات د نايب الحکومه په توګه وټاکه.

دامهال د خوراسان ولايت چارې ګډې وډې[1] او د احمدشاه د ورتګ او د هغه ځای د نيولو له پاره او تيا چمتو وه، خو احمدشاه نوموړی تګ راتلونکې ته وځنډاوه پوازې وزير شاه وليخان يې له لسو زرو سرتېريو سره د افغانستان د شمالي سيمو (مرو، ميمنه، بلخ، بدخشان) د سمون له پاره واستاوه او خپله د هرات تر سمون وروسته کندهار ته راستون شو. سپاه سالار سردار جانخان چې د مشهد د بلواګرو د مخنيوي له پاره «چې د اميرخان مرستې ته راخوځېدلي وو» له پېنځو زرو سرتېريو سره لېږل شوی و، هغوی يې د تربت شيخ جام په سېمه کې سره وشنل او بېرته د احمدشاه له اوردو سره يوځای شو.

احمدشاه کندهار ته له راتلو سره سم ځنډ ونه کړ او د کندهار د لنډګاونډي «بلوڅستان» د نيولو له پاره يې يو ګډ لښکر واستاوه، ابن محمد امين په دې اړه وايي

---

(۱) د نادر تر وژلو وروسته (۱۱۶۰) يې وراره ميرزا علي قليخان د زابل، سيستان، هرات و هزاره له افغاني سرتېريو سره له سيستانه مشهد ته لاړ، د نادر ټول کهول يې وواژه او ړوندوينډي يې کړ. يوازې د نادر لمسی شاهرخ يې د کاروني له پار وساته او په خپله يې د هماغه کال د جمادي الاخر پر (۲۷) د عليشاه تر نامه لاندې د پاچاهی غېږ پورته کړ، وريسې يې ورور د عراق حاکم ابراهيم خان ورته راپورته او د نورو افغاني مشرانو لکه الله يار خان غلزي او نورو په مرسته يې په سلطانيه کې له علي قلي سره جګړه ونښلوله؛ مات يې کړ او د ۱۱۶۱ کال پر نيمايي په خپله پاچاه شو، خو ډېر ژر په سمنان کې د شاهرخ او خوراساني سرتېريو له خوا راوپرځېد او ووژل شو او شاهرخ يې پرځای کېناست. بل کال يې علي قلي هم وواژه. پر (۱۱۶۳) کال اتلس کلن شاهرخ د امام رضا زيارت د متولي ميرسيد محمد له خوا بندي او ړوند کړای شو او نوموړی سيد يې د سليمان شاه په نامه پرځای کېناست، څو ورځې وروسته دی هم دلښکر د مشر يوسف جلاير له خوا ړوند و بندي شو او ړوند شاهرخ تش په نامه پاچاه وټاکل شو.

يوسف هم پر (۱۱۶٤) کال د ميرعلم خوراساني او د «کورد» د اميرجعفر له خوا په جګړه کې مړ او د شاهرخ نايب السلطنه توب اميرعلم ته ورسېد. امير علم خپل ملګری د کورد جعفر هم وواژه او په خپله تر (۱۱۶۶) کال پورې پاتې شو، خو پر هماغه کال د احمدشاه دراني ورتګ نوموړې شخړې ټولې له منځه يوړې.

کتلی شئ: مجمل التواريخ، د ابن محمد امين ليکنه، د زين العابدين له لمنليک او د مدرس رضوي له ځنډ ليک سره، د تهران چاپ، ۱۳۲۰ کال.

چې دا يون احمدشاه په خپله کړی دی[1] خو نوموړی مؤرخ د يونونو د نېټو او څرنګوالي په اړه ژورې تېروتنې لري. په هر ډول، دا مهال بلوچستان د سردار نصيرخان بلوچ په لاس کې و چې يو آزمېيلی او زړور سړی و، ده د نادر تر مړينې وروسته له خپله نايب الحکومه توب نه يوه کوچنۍ پاچاهي جوړه کړې وه، خو سره له دې هم هغه چې د ژور ليد خاوند و، هيڅکله پر خپل ځواک ويسا نه شو او د احمدشاه وړانديځ يې ومانه چې د هغه له خوا د بلوڅستان نايب الحکومه او په جګړو کې به له شپږزرو سپرو بلوڅو سره داحمدشاه په اوردو کې خدمت کوي او د خپلو د غو سپرو کنډکونو لګښت و تنخا به د بلوچستان په ماليه کې شمېري. نصيرخان دومره د ادب خاوند و هوښيار و چې داحمدشاه د مينې او ځانګړې پاملرنې وړ وګرځېد. نصيرخان وروسته له شپږزريز بلوڅ لښکر سره د هند و نېشاپور په راتلونکيو جګړو کې د احمدشاه ترشا ليدل کېږي. احمدشاه هم دده د زيار ګالنې په درناوي په شمال کې د « هنه ګي » سيمه چې د پښتنو کاکړو ځای و، ورو ښله.

خو، شاه ولي خان له هراته مروې ته ورسېد او له هغه ځايه ميمنې ، اندخوی او شبرغان ته واوښت؛ ټولې د غه سيمې يې د احمدشاه دولت اړوند او نوي مشران يې پرې وټاکل.

شاه وليخان چې بلخ ته راغی يو لښکر يې تا شقرغان او ايبک ته تر باميانه ولېږه، دلښکر مشر ته يې لارښوونه وکړه چې په نوموړيو ځايو کې مشران وشمېرونکي وټاکي او د ماليو د ورکړې له پاره آر کېدي. وروسته شاه وليخان د کوندوز له لارې تخار ته واوښت ؛ تر بدخشانه (فيض آباد ) مخکې لاړ او د بلخ چارې يې هماغلته هم پلې کړې. شاه وليخان د دغو دوو لويو افغاني ولايتونو تر سمون وروسته دخان آباد و اندراب له لارې پر هندوکوش واوښت او له پنجشيره ګلبهار ته راغی؛ د کوهستان و کوهدامن د چارو تر څغلنده سمون وروسته د کابل له لارې کندهار ته لاړ او د ( ۱۱٦٤ ) کال په وروستيو کې احمدشاه ته ور ورسېد. احمدشاه ډېر ترې خوښ و چې دی يې په شمال کې د اوږده يانه له ستونزو څخه ژغورلی و، له همدې امله يې په ګلبهار کې يوه ښېرازه ځمکه چې شاه ولي خان د لارې په ترڅ کې په خپله خوښه کړې وه؛ ورو ښله.

---

(۱) مجمل، ۹۰مخ.

# نه ویشتم څپرکی

## څلورم یون (۱۱۶۵) کال

### د پنجاب و کشمیر نیول، ډېلي دربارته سفیر لېږل، د ملتان و سند او د اندوس د ښیو کڅونو سمون

احمدشاه پر (۱۱۶۵) کال اوردو ته د یانه لار ښوونه وکړه، دا مهال سرتېري ښه په دم کې وو او کالنی درې میاشتنی دمه یې په کورونو کې تېره کړې وه، د لښکراسونو هم د اوړي وابښه خوړلي، مزي او چمتو وو. احمدشاه له کندهاره د کابل له لارې مخ پر پېښور روان شو، نوموړي ښار ته تر رسېدو وروسته یې د ایشک آقاسي عبدالله خان په مشرۍ یو لس زریز لښکر د کشمیر د نیولو له پاره ولېږه، عبدالله خان په اټک کې له اباسینه پورېووت او د حسن ابدال له کلي یې مخ پر کشمیر لاریون ونیو، تردې پورې لا دغه ولایت د هند شهنشاه په بې جوکې نامه سمبالېده، همدا چې عبدالله خان ورننوت، د کشمېر حکومت یې ونیو او تر سمون او د ساتونکیو ځواکونو تر ځای پرځای کولو وروسته یې، کوچنی خواجه عبدالله خان (کوچنی ځکه چې له ده سره یې توپیر وشي) نایب الحکومه او سکجېون هندو یې د کشمیر ولایت مستوفي وټاکه او په خپله د کندهار لورې ته راروان شو.

مستوفي سکجېون د وزیر شاه ولیخان لاس روزلی خو د فطرت (ختې) له مخې دروهن و بې پته سرى و چې څه موده وروسته یې د دروهې او تګی په لار کې سر بایلود. احمدشاه له

پېښوره لاهور ته لاړ، معين الملک ميرمنو چې پلار يې د سرهند په جگړه کې (۱۱۶۱) د احمدشاه له لاسه وژل شوی او د پنجاب څلور سيمې ترې لاړې وې (۱۱۶۲) ، داخلي وروستي جگړې ته چمتو شو. د هغه سپاه سالار «راجاگورامل» له سينده تېر او شاهدرې ته نږدې يې اډه ونيوه. همدا چې احمدشاه راورسيد، کلکه جگړه ونښته، ښکاره ده چې برې د افغاني اوردو وا او د پنجاب سپاه سالار ووژل شو؛ سرتېري يې وتښتېدل او معين الملک خان سپارلو ته اړ شو، مفتي عبدالله يې د احمدشاه اوردو ته ورولېږه او د شاه وليخان په منځگړتوب يې بښنه وغوښته، احمدشاه پر ښښنه سربېره دی يو ځل بيا د افغانستان د پنجاب د نايب الحکومه په توگه وټاکه، ميرمنو هم خپله خوندينه چې څه د پاسه لس ميليونه روپۍ وې، د ماليو په نامه د احمدشاه دولت ته وسپارله او د رښتينوالي لوړه يې وکړه. احمدشاه لاهور ته ورننووت؛ د چاروسمون يې پيل کړ او کلندر خان افغان يې له يوه ليک سره چې د پنجاب نوې پېښې په کې ليکل شوې وې، ډيلي دربار ته ولېږه. د هند شاهنشاه احمدشاه گورگاني چې د سرهند جگړه يې هېره شوې نه وه او بيا يې له افغانانو سره جگړه نه غوښته، د احمدشاه دراني وړانديځ يې واخيست او ويې منله چې تر ستلج اخوا پنجاب، سند، ملتان و کشمير دې د افغانستان وي. افغان احمدشاه د پنجاب و ملتان د چارو ترسمون وروسته د سند د ښي اړخ کځونو د چارو د سمبالتيا له پاره له اباسينه تېر او ارزښتمنې افغان مېشتې سيمې يې له ډېرو نه تر پېښوره وکتې او له وگړيو او خانانو سره د مالي او پوځي چارو، گرنيزوتوکو او د وسله والو د سرشمېرنې په اړه وغږېد او ځينې آرونه يې وټاکل چې «د گروال ميلسن» و «محمد حيات» يې يادونه کوي. همدا راز دغه وروستي مؤرخ په نومورېو افغاني سيمو کې د احمدشاه د ځينو آرونو نومونه اخلي. لکه: احمدشاه د گنداپوريو او اپرېديو د وسله والو سرشمېرنه وکړه چې د لومړي ډلې وسله وال (۱۲) زره او د دويمې (۱۹) زره وټاکل شول. يا دا چې پر (۱۱۸۱) کال يې د مياوالې د سيمې د يوې کولبې ځمکې (نږدې څلوېښت جريبه) ماليه «يوه» روپۍ وټاکله، همدا راز يې له مروتو نه د کالنۍ ځمکنۍ ماليې پرځای دوه سوه مهار شوي اوښان او د جگړې په ورځو کې دوه سوه بې تنخا سپاره اخيستل. د بنو ماليه يې هم د لښکر د لگښت و خواړو پر شپږ و زرو روپيو سربېره، د کال (۱۲) زره روپۍ وټاکله. (۱) محمد حيات همداراز پر (۱۱۷۳) کال بنو ته د احمدشاه د تگ يادونه هم کوي. (۲)

احمدشاه د سند د ښيو غاړو تر کتو وروسته، پېښور ته راغی او له هغه ځايه د کابل پر لار کندهار ته لاړ. کندهار ته له راتگ سره سم يې د مشهد ولايت د نيولو چارې تر کار لاندې ونيوې.

---

(۱) حيات، ۴۳۷-۳۱۳-۶۱۵-۵۸۲-۵۲۰ مخونه. (۲) حيات، ۶۲۸ مخ

# د پرشم څپرکی

## پینځم یون (۱۱۶۶) کال

### د نېشاپور جګړه

احمدشاه چې نور د افغانستان له ختیز لوري وزګار شوی و، بیا یې لویدیځ ته پام او د هېواد د پخوانیو څمکو بیا نیونه یې پیل کړه. له همدغه امله پر ۱۱۶۶ کال له کندهاره هرات او له هغه ځایه مخ پر نېشاپور وخوځېد. د احمدشاه سرلښکر د لارې په منځ کې د شاهرخ د استازي میرعلم له ورور معصوم نه «تونکلا» ونیوه او احمدشاه یې ځنډ و د پله نېشاپور ښار چې د شاهرخ د حاکم «جعفربیات» تر لاس لاندې و؛ کلابند کړ. د جګړو په ترڅ کې جعفر مرمۍ وخوړه او ځای یې اتلس کلن «عباسقلي» ونیو. هاغه مهال نېشاپور له کلکو پوځي ښارونو څخه ګڼل کېده او ناڅاپه هوا سړه او وورښتې شوه چې پوځي خوځښت وتو پونه یې له ستونزې سره مخامخ کړل. د عباسقلي تره «سیف الدین» خپل زلمي وراره ټینګار ته هڅاوه. ژمې رالنډېده او د خواړو، واښو او سوند توکو تنګڅه په مخ کې وه. په ځانګړې توګه چې د نېشاپور د سېمو څو کلنو پرله پسې بلواوو او د نادر تر وژل کېدو وروسته د ځان خوښیو مشرانو تاړاکونو د دغه ولایت کلي و بانډې ړنګې کړې وې. احمدشاه لیده چې کلابندي اوږدېږي، څکه یې د راستنېدو پرېکړه وکړه او تر شاتګ مخکې یې لارښوونه وکړه چې درانه توپونه چې ورل یې د پرله پسې ورښتونو او د لارو د ویجاړتیا له امله ستونزور وو، د نېشاپور په کاریزونو کې ښخ کړای شي او په خپله د هرات خواته راوګرځېد. له هرات نه د تېرېدو پر مهال په اوسني اسلام کلا کې ساړه دومره ډېر شول چې د مؤرخینو د وینا له مخې په یوه شپه کې اته سوه سرتېري مړه شول او د اوردو ډېرو پوځیانو د ځارویو په څېرل شویو ګېډو کې شپه تېره کړه. خو همدا چې احمدشاه کندهار ته راغی د هغه ځای تود و پوست ژمی ده او د ده اوردو ته د هوساینې لامل شو.

# یو دېرشم څپرکی

## شپږم یون (۱۱۶۷-۱۱۶۸) کال

### د مشهد و نېشاپور نیول

احمدشاه د نېشاپور د پروسږن یانه (۱۱۶۶) تر راتګ وروسته او د نوموړي ځای د چارو د نیمګړې پرېښوونې له امله د زړه له کومې ناکراره و، همدا چې هوا ښه شوه پر (۱۱۶۷) کال بیا د پلازمېنې له سرتېریو سره وروخوځېد، یوشمېر سپرویې له سپارښتنې سره سم، هر یوه له ځان سره د کابل په تیږه دوه نیم چارکه چوون هم واخیستل چې نېشاپور ته له ورتګ سره سم یې د کلاتړوونکیو توپونو جوړو ونکیو ته ورکړي.

احمدشاه له هراته جام، لنګر او له هغه ځایه مشهد ته لاړ او ښار ته نېږدې د جلوایي سهمه یې اډه وټاکله. دا مهال د ړانده شاهرخ (د میرزا رضا قلي زوی او د نادرشاه خوراساني لمسی) خپلچاري نایب السلطنه «امیرعلم خزیمه» په مشهد کې نه و او کوم لرې ځای ته لاړو، د نوموړي خپلسریو چارواکیو شاهرخ له احمدشاه سره جګړې ته اړ ویست او جګړه ونښته، خو پرګنو شاهرخ ځانسپارنې ته وهڅاوه، دی هم د احمدشاه اوردو ته راغی او د خپل اړوند والي او غوړ نهونې څرګنداوی یې وکړ. احمدشاه د خپل پخواني سیاسي چلند له مخې شاهرخ ونازاوه او د ځان له خوا یې د مشهد نایب الحکومه وټاکه. وروسته احمدشاه مشهد ښار ته ورننوت؛ د چارو پر سمون لګیا شو او افغان نورمحمد خان یې په ښکاره د شاهرخ مرستیال، خو په مانا کې د خوراسان ولایت د بشپړ واک خاوند وټاکه. په ملکي جوړښت کې یې هم د جام، باخرز، خاف، تربت و ترشېز

سیمې له مشهده بېلې او د هرات اړوند یې کړې.

احمدشاه له دغه ځایه د کندهار د ځواکونو کوماندان «شاه پسند خان» له پنځو زرو سپرو سره د شاهرو د ، بستام و سبزوار د نیولو لپاره ولیږه ، نوموړی د خپلې دندې تر بشپړولو وروسته د مشهد لوېې چاونۍ ته راستون شو . د ځینو د وینا له مخې په دغه یانه کې د شاه پسند سپرو د لوډ خزر د کڅونو د خپلواک واکمن حسن خان کاجار له ځواکونو سره د «مزینان» پر دښته په ناڅاپي توگه ټکر وکړ ، تر دې پېښې وروسته احمدشاه له مشهده ووت او د نېشاپور پر لوري روان شو ، همدا چې نېشاپور ته ورسېد ، عباس قلي بیا ناآرامه شو او احمدشاه د افغاني ، یا د سلطان محمد د وینا له مخې د پېرنگي کارپوهانو په مرسته یو لوی توپ جوړ کړ . که څه هم چې د احمدشاه په اوردو کې د اروپایي کارکوونکیو شته والی له منلو لرې ښکاري ، خو دا سمه ده چې د ه د نېشاپور نیونې او د پروسېرن سپکاوي د لرې کولو له پاره درون توپ جوړ کړ . احمدشاه هوډمن و چې د خوراسان له څنگه دا ازغي لرې کړي ، په دې توگه د ېوالونو جگړه پیل شوه او د دغه درانه توپ په مرمیو « چې د ځینو مبالغه خوښوونکیو مؤرخینو په وینا یې یوه مرمۍ د کابل په تیره دوولس نیم منه کېده » د ښار کلکې سیمې ونړول شوې.

نېشاپوریانو « چې له پخوا راهیسې یې له احمدشاه سره د جگړې هوډ نه و » عباسقلي خان سپارنې ته اړ وېست ، ده هم له خپلو وسله والو سره ځان وسپاره ، خو له بده مرغه چې د ښار د پوځي ځایونو غوره برخې ړنگې شوې وې. په هر ډول ، احمدشاه چې زړور مېړونه یې روزل ، عباس قلي یې هم و نازاوه ؛ د ځان له خوا یې د نېشاپور پر حکومت وټاکه ؛ د هغه تېرې غزني ته راوست او په خپله پر ۱۱۶۸ کال د هرات پر لار کندهار ته لاړ.

تردې وروسته احمدشاه د کورنیو چارو د سمون له پاره ښه وزگار شو ځکه چې ده د اته کلن کړاو په ترڅ کې خپله ستره سلطنتي دنده چې تر افغان ملي بیرغ لاندې د افغانستان د ځمکو سیاسي او اداري یووالی و ، په ښه توگه بشپړه کړه ، اوس چې له جیحونه تر عمان او له ستلجه تر سیستان پورې دده په هېواد کې گڼل کېدل ، هاغه مهال رارسېدلی و چې احمدشاه په کراري سره د خپلو اته کلنو هڅو پایله تر لاسه کړي.

هېره دې نه وي چې احمدشاه په خپله دغه جغرافیایي نقشه کې د هېواد یوه غرنۍ سیمه (بلورستان) چې اقتصادي ارزښت یې نه لاره ؛ هېره کړې وه ، ځکه چې له څو پېړیو راهیسې ، له گوډ تیمور پر ته چا د افغانستان د دغې پر زره پورې سیمې یادونه کړې نه ده.

احمدشاه تر ( ۱۱۷۰ ) کال پورې له پلازمېنې (کندهار ) ونه ووت او پر اداري چارو بوخت و ، خو د پېښو بهیر تر دې نور کرار پرې نه ښوو .

# دوه دېرشم څپرکی

## اووم يون (۱۱۷۰) کال

### د پنجاب و کشمير سمون، د ډيلي نيول

احمدشاه د دولت لوړ پاړي چارواکي ژر، ژر له خپلو دندو څخه نه لري کول، موږ د احمدشاه مهال داسې ښېرې پېژنو چې دده د پاچاهۍ تر پايه يې هغه واک چې لارويې ساته، لکه اشرف الوزرا شاه وليخان چې شپږويشت کاله لومړی وزير او سردار جانخان همدومره موده د افغاني اوردو لوی سپاه سالار و.

که يو رېښتين و ازمېيلي چارواکی به د دندې په ترڅ کې مړ شو، احمدشاه يې زوی يا ورور پرځای ټاکه، په همدې توګه چې د پنجاب افغاني نايب الحکومه معين الملک ميرمنو مړ شو، احمدشاه يې ځای دده زوی «مير مؤمن» ته ورکړ، نوموړي د خپلې هوښياري مور «مغولاني بېګم» واوښي خواجه موسی په مرسته د غه ستره پاژه پرمخ بوتله، خو د مير مؤمن ژوند لنډ او تر مړينې وروسته يې د لاهور د سترو چارواکيو او مغولاني بېګم ترمنځ شخړې پيل او د حکومت چارې ګډې وډې شوې، احمدشاه له کندهاره د سپاه سالار جانخان ورور «امان خان پوپلزی» د نايب الحکومه په توګه ټاکلی ورولېږه خو د نوي حاکم ترور رسېد و پورې ناخوښيو چارواکيو، لکه د پخواني نايب

الحکومه مرستیال طره باز خان ، پوځي کوماندان بکاري خان رستم جنګ ، د نایب الحکومه زوم خواجه موسی احراري ، د نواب عبدالصمد خان زوی عبدالله خان سیف الدوله او ځینو نورو دومره او تا ترخه کړې وه چې امان خان یې له سمولو بېجوکې شو ، ددغه تاوتریخوالي یو ستر لامل د هند د دولت وزیر احمدشاه ګورګاني د امیرالامرا ، د اصف جاه د لمسي او د خان پیروز جنګ د زوي شهاب الدین عماد الملک غازي الدین خان بهار پیروز جنګ[1] پټې لمسونې وې.

په هند دربار کې د غه وزیر ستر اغېز لاره او د هندوستان شاهنشاه « دویم عالمګیر » یې د قلم غوندې په ګوتو نڅاوه.

همدا چې غازي الدین په پنجاب کې اوبه خړې ولیدې ، د کبانو نیول یې پیل کړل او سید جمیل خان یې له پوځي لښکر سره لاهور ته واستاوه ؛ د میرمنو مور یې په دوکه او تګې یرغمل او نومیالی بلواګر « آدینه بېګ » یې ومانه او پوځي مرسته یې ورکړه ، چې هغه بیا پر ( ۱۱۷۰ ) کال د هندوستان د شاهنشاه له لښکرو سره لاهور ونیو او د دریو میلیونو روپیو په ورکولو د هند د دربار حکمران شو . سربېره پر دې غازي الدین وکړی شول چې په کشمیر کې افغاني مستوفي « سکجیون » د خپل دولت پر وړاندې د روهې ته راکاږي ، سکجیون د مېلمستیا پر شپه د کشمیر نایب الحکومه او پوځي کوماندان « کوچنی خواجه » په ناځوانۍ سره بندي او ووژه او ځان یې د ډیلي له خوا نایب الحکومه وټاکه . احمدشاه چې پر له پسې یې دا خبرونه اخیستل پر ۱۱۷۰ کال یې په کندهار کې پوځ « تیارسئ » او سمدلاسه د پوځیانو او نیم پوځیانو راغونډېدل پیل شول. احمدشاه داځل پرغز نیولی و او غوښتل یې ژر تر ژره بلوائیي ته وررسېږي ، ځکه یې د

---

(۱) غازي الدین زړور ، ژېبوه ، شاعر او ښه لیکونکی ، خو مرستهیری او حق ناپېژندونکی سړی و او د ګټې او نامه ډېر وږی و . ده سربېره پر دې چې له خپل مرستندوی ابومنصور صفدرجنګ سره چې د هند په دربار کې یې دده پلوي کوله ، له پاچاه سره هم پټ پړې کړ . هندي احمدشاه دی خپل وزیر وټاکه ، خو نوموړي مرهتیان له شاه سره جګړې ته راوبلل ؛ په سکندره کې یې ولوټه او د پاچاه مور یې ړنده کړه ، ورروسته یې له خپل نوي لاسپوڅي پاچاه « دویم عالمګیر عزیز الدین محمد » سره هم همدا ناوړه چلند وکړ . د نوموړي دغو کړنو له یوې خوا د هند د اسلامي دولت د ړنګولو ، مرهتیان زړور کړل او له بلې خوا یې پاچاه د پردیو د هر ډول ملاتړ و مرستې راکاږلو ته چمتو کړ ، خو همدا چې غازي الدین د افغان احمدشاه له خوا وشړل شو . بیا یې ښه ورځ و نه لیده ؛ د نړۍ له چارو یې لاس واخیست او د دوولسمې هجري پېړۍ په پای کې په یوه پټ وتېلو بر خلیک له نړۍ نه لاړ .

پخوانیو یونونو پر توپیر، د بلوچستان لارونیوه او د لارو پر ناورتیا سربېره د بلوچستان له شمالي سېمو څخه سند ته واوښت[1] او چې له اندسه تېر شو، مخامخ په لاهور ورغی. دا مهال آدینه بېګ د پېښې پر ارزښت وپوهېد او لیدل یې چې هند دولت و وزیر غازي الدین له احمدشاه سره د جنګېدو متره نه لري، نو سملاسي تېښته یې د هوښیارۍ کار وګاڼه: لاهور یې خوشې کړ او د هانسي د بوال خواته لاړ، خو احمدشاه یوازې د پنجاب سمون نه غوښت، د هغه هیله دا وه چې د ډیلي دربار له ناوړه څېرو څخه پاک او د هند شاهنشاه لاړې ته له راوستو سره، پیاوړی هم کړي چې د خپل هېواد ساتنه وکړای شي او د هند ناوړي پنجاب ته رانه شي، ځکه د لاهور و پنجاب تر ځغلنده سمون وروسته بیا له ستلجه پوربووت، دا مهال د «نورالدینخان بامېزي» ترمشرۍ لاندې کشمیر ته تلونکی لښکر مخ پر شمال روان و، همدا چې کشمیر ته ورسېد، بلواګر یې وشنل، مستوفي سکجېون یې ونیو او بندي یې لاهور ته ولېږه او په خپله څه موده د هغه ولایت د سمون له پاره پاتې شو.

هند دربار له ستلجه د احمدشاه له راتېرېدو څخه خبر شو، خو ویې نه غوښتل، یا یې ونه شو کړای چې مخنیوي ته راوړاندې شي، ځکه یې د هرکلي لار ونیوه او ترټولو مخکې د هند افغاني مشران ډېر تاوده ښکارېدل، له دې ډلې څخه د اصالت خان یوسفزي زوی «نجیب خان- نواب نجیب الدوله بهادر» چې د وزیر غازي الدین له خوا له پوځي ځواک سره د جګړې له پاره رالېږل شوی و، د کرنال په سېمه کې له احمدشاه سره مل شو.[2] نوموړی زړور سړی او د هند په افغاني نومیالیو سرونو کې ګڼل کېده، له

(۱) Afghanistan From Darus to Amanullah. د سرجارج مکمن لیکنه، د لندن چاپ. ۱۹۲۹، ۶٤-۷٦ مخونه.

(۲) په پیل کې نجیب الدوله د روهیله له مشرانو حافظ رحمت خان و دوندي خان سره په مراد آباد کې اوسېده او څه ځای او نوم یې نه لاره، د هندي احمدشاه وزیر «غازي الدین» ډیلي ته راوغوښت او خپل سیال ابومنصور خان صفدرجنګ ته یې مخامخ کړ. د هغو جګړو په ترڅ کې چې وشوې نجیب خان، ابومنصور دې ته اړ کړ چې او دې ته پر شا شي، تر دې وروروسته «نجیب خان د نجیب الدوله و اقطاع بهتر ګده نوم وګاڼه. وزیر غازي الدین دی هند ته د افغان احمدشاه د لښکر غځونې پر مهال، مخنیوي ته ورولېږه، خو نجیب الدوله د جګړې پر ځای احمدشاه ته له درناوي سره ورغی، احمدشاه هم دی په ډیلي کې د هندوستان امیرالامرا (د پوځي ځواکونو لوی کوماندان) وټاکه. نجیب الدوله د ژوندانه تر پایه ددې لویې څوکۍ څښتن و. دی سپېڅلی او زړور سړی و او د ډیلي د دښمنو او مرهټیانو په جګړو کې یې څرګندې اتلولۍ وکړې. د جټانو نومیالي مشر «سورج مل» چې دهندوستان د اسلامي سلطنت لوی دښمن او د مرهټیانو پلوی و، هم په پای کې د نجیب الدوله له خوا ووژل شو او ځای یې زوی «جواهر سنګ» ته پاتې شو.

همدې امله د احمدشاه له خوا د هندوستان دولت سپاه سالار وټاکل شو، ده د «پاني پټ» په جګړه کې د هند د نورو افغاني مشرانو په ګډون، زيات کړه چې افغاني وينه يې په رګونو کې چليږي.

احمدشاه له ډيلي نه دبرش ميله لرې وچې په «بسونيت» کې يې وزير غازي الدين د هند دولت په نامه هرکلي وکړ او د ډيلي د سياسي تېروتنې ښېنه يې وغوښته، احمدشاه د هند ولت د دغه پوځي لښکر غځوني د لګښت تاوان لنډولو ته راوباله، خو وزير خپله بې جوکۍ وښوده او احمدشاه مخ پر ډيلي وخوځېد.

د ډيلي په پېنځلس ميلي کې د هندوستان شاهنشاه دويم عالمګير «محمد عزيزالدين» د احمدشاه ليدو ته وررسېد او احمدشاه د جمادي الاول پر (۷) د جمعې پر ورځ پر ډيلي ښار ورننووت، دويم عالمګير چې د افغانستان له شاهي کورنۍ سره يې خپلوي ښه ګڼله، ځکه يې د خپل ورور شاهزي اعزالدين لور نکاح په ځانګړي سلطنتي دود له شاهزي تيمورشاه سره وتړله. احمدشاه د هند د چارو د سمون له پاره، د هېواد لوی وزارت د پخواني وزير الممالک قمرالدين خان زوی نظام الدوله[1] ته ورکړ او افغان نجيب الدوله يې د هندوستان سپاه سالار وټاکه.

احمدشاه يوه مياشت وخو ورځې په ډيلي کې مېشت و او له ښه مرغه دغه پلازمېنه چې اتلس کاله پخوا يې د نادرشاه د اوردو له لاسه د هنديانو په وينا دوه سوه مېليونه روپۍ تالا شوې وې، دا ځل دا حمدشاه د پوځي سمون تر سيوري لاندې بشپړ وساتل شو او له دېرش زريز افغان اوردو نه يې چې تر سبزونکي لمر لاندې يې سلګونه ميله لار وهلې او اوس يې ددوی په ګروهه د نيول شوي هېواد د پانګو منځی او زېرمه په لاس کې وه؛ هيڅ‌ډول زيان ونه زغامه، خو په خواشينۍ سره چې د کرکې جتانو له سهمو نه ډيلي ته د افغاني اوردو تر راستنېدو وروسته، د ډيلي د ځينو بدغوښتونکيو د لاسوهنو او د اوردو له امله دا حمدشاه پرهوډ سربېره دغه او تا بلېږ ول شوه.

---

(۱) نظام الدوله د هند د وزير الممالک (صدراعظم) اعتماد الدوله قمرالدين خان زوي دی. پلار يې د بهادر شاه او فرخ سير له مهاله ترمحمد شاه ګورګاني پورې د هندوستان له لويو چارواکيو څخه و. په خپله هم د احمدشاه ګورګاني له خوا يو ځل وزارت او بل ځل د هندوستان امير الامرا رتبې ته رسېدلی و او دا دی يو ځل بيا د افغان احمدشاه له خوا د هند پر وزارت وټاکل شو. خو د هغه يو ګړ شمېر پيسې هم دا حمدشاه دولت پانګې ته ورکړ شوې.

په ډهلي کې د احمدشاه د اوسېدو په ترځ کې د هند گوښه شوی وزیر غازي الدین د دویم عالمگیر له زوی شاهزي هدایت بخش او د هغه له زوم میرزا بابر سره د افغاني مشر جانباز خان او یوې پوځي ډلې په ملتیا د مالیو راټولولو په نامه فرخ آباد ته لاړ. د هغه ځای والي سردار احمدشاه بنگښ د احمدشاه په نامه سړي او شتمنۍ ورکړې او غازي الدین او دې ته لاړ، دا ودې والي شجاع الدوله په سربرید کې جگړې ته چمتو شو، خو روهیله افغان سعدالله خان پرې نه ښوو او د پېنځوسوو زرو روپیو ورکړې ته یې اړ ویست. غازي الدین پر راستنېدو په فرخ آباد کې تم او احمدشاه ته یې ورتگ وځنډاوه. له ډهلي خوا احمدشاه لیدل چې د هند سلطنت چارواکیو د لاسوهنو له امله «په ځانگړې توگه» له سهیله ترگوابښ لاندې دی.

د احمدشاه سیاسي تگلارې غوښتنه کوله چې د افغاني گټو د ساتنې له پاره، د هند اوسنۍ دولت پیاوړی او تر ملاتړ لاندې یې ونیسي، ځکه یې د هغه د دښمنو د ځپلو پرېکړه وکړه. هندیان حق لري چې د احمدشاه له دې کړنې څخه ناخوښي څرگنده کړي او گرمه او پړه پرې ورواچوي چې ولې یې د هندوستان پاچاهي له یوې ورستې او مخ پر ړنگېدو کورنۍ څخه یوه بل پیاوړي لاس ته ونه لېږدوله. کېدای شي چې افغان احمدشاه د هاغه مهال افغانستان د ختیزو ولایتونو د اوتاله په پام کې نیولو سره سم، همدا سیاسي چلند وړ گڼه، سربېره پر دې یې د پاچاهۍ له گدۍ څخه د یوه داسې پاچاه راغورځول چې ده ته یې ځان سپارلی و، له مېړانې لرې گڼل، په ځانگړې توگه چې په خپله یې هم پر افغانستان پورې د هندوستان تړل نه غوښتل.

احمدشاه د جمادی الاخر په پیل کې له ډهلي نه راروان شو او د ډهلي له دبرش میلۍ څخه یې د جټانو له خوا د نیولیو کلاوو پر بیا نیونه پیل وکړ او د «دیلم گدهـ» چاونۍ او «مېترا» منځي تر نیولو وروسته د «اگرې» ترشماله مخکې لاړ. د احمدشاه اډه په اکبرآباد کې وه او سپاه سالار یې د جټانو په سېمو کې وراندې تلو چې له هندیانو نه افغاني اوردو ته «کالیره» ناروغي خپره شوه. احمدشاه چې دښمنان یې مات کړي او ډارولي وو، مخ پرشمال وخوځېد. د هندوستان پاچاه او سپاه سالار نجیب الدوله د ډهلي ترڅنگ د «تالاب مقصود» په سېمه کې هرکلي ته ورغلل. دا مهال د محمدشاه گورگاني مېرمن «صاحبه محل» له خپلې بنږ «ملکه زمانی» سره چې ترور لور یې هم وه

او د ډیلي ژوند یې تریخ ګاڼه، له افغان احمدشاه نه غوښتنه وکړه چې ل لور سر یې واده وکړي، احمدشاه دا غوښتنه ومنله او د منشي غلام حسین په وینا تر واده وروسته یې ناوې، خوانبې او ملکه زماني ګرد سره کندهار ته بوتلې.

احمدشاه تر لږ ځنډ وروسته له ډیلي نه افغانستان ته راوخوځېد او چې د ستلج ګڅوونو ته راورسېد، «عبدالصمد خان ممن زی» یې د هغه ځای «سرهند» پر حکومت وټاکه چې پنجاب تر اوبو اخوا استازی او مخکښ ولري. همدا راز یې په لومړي دوآبه کې «د ستلج وبیاه ترمنځ» افغان سرفراز خان حاکم وټاکه او د ملتان نایب الحکومه توب یې د هغه ځای د پخواني نایب الحکومه زاهد خان زوي شجاع خان ابدالي ته وسپاوه.

احمدشاه لاهور ته تر رارسېدو وروسته پردې پوهېده چې د سیکهانو ځینې نوې منځته راغلې ډلې بیا بلوا او ورانی غواړي، نو شاهزی تیمور یې د پنجاب، ملتان و سند د نایب الحکومه په توګه وټاکه او سپاه سالار جانخان ته یې دنده ورکړه چې د «امرتسر» د بلواګرو سیکهانو غورځونه تا وکړي. بلند خان سدوزی یې هم د کشمیر حکومت ته ولېږه او نورالدین یې راوغوښت. احمدشاه تر دغو چارو وروسته «د ۱۱۷۷ کال پای» چې یو لوی هېواد یې د پاچاهی تر سیوري لاندې راوستی و، پېښور ته راغی او د کابل له لارې کندهار ته راورسېد.

# درېيم څپرکی

## اتم يون (۱۱۷۳-۱۱۷۴) کال

### د بلوچستان د نايب الحکومه «نصيرخان» ګواښ، د پانيپت جګړه، د هندوستان نيول

احمدشاه چې پر (۱۱۷۰) کال له هندوستانه راستون شو، د افغانستان په ختيزو ولايونو کې ژورې پېښې منځته راغلې. کندهار ته لا د احمدشاه د راتګ يوه مياشت نه کېده چې پنجاب بلوا پيل کړه (۱۱۷۰)، دامهال د پنجاب و هندوستان په سياسي او تاکې د دوو بلواګرو کړنو ځانګړی اغېز لاره، دا دواړه چې پرموخو يې سربېره اخلاق هم سره ورته وو، هماغه د هند ګوښه شوی وزير د پيروز جنګ زوی غازي الدين او نوماند آدينه بېګ وو. د هند و پنجاب دغو ورځو او تا ددوی د غوښتنو د پلې کېدو له پاره خورا چمتو وه، په دې مانا چې پنجاب له څه مودې راهيسې د «سيک» د نويو ټوکېدليو ډلو اورني ناتار ګواښه. سيکانو د مذهبي تاو تريخوالي ترخمار لاندې لويه ټولنه جوړه کړې وه او دا چې د دغه نوي زېږېدلي مذهب[1] ما نيز اغېز مخ پورته او د خپلو پلويانو

(۱) «نانک ګرو» د سيک مذهب بنسټ اېښوونکی د نهمې هجري پېړۍ پر پای د راوي په کڅونو کې وزېږېد، د بېديان د پور او د کهتريانو د ډلې اړوند و چې لومړی يې د افغاني شاهنشاه ابراهيم شاه ------>>

د عقل ځای یې نیولی و، ځکه نو دا پله د هر هغه څوا ک جګړې ته د سر سپارنې تر بریده چمتو وه چې له خپل مذهب سره یې په ټکر کې لیده.

د معین الملک میرمنو او د هغه د زوی میر مومن د حکومت پر مهال سر بېره، د دې دلې په اړه د هغوی د کارکوونکیو د کلک چلند له امله سخت غبرګون منځته راغی چې دوی یې پاڅو وچاودون ته چمتو کړل. احمدشاه چې له پخوا نه د سکالو پر ارزښت پوهېدلی و، وروسته تر دې چې د روغې جوړې سیاست بنه پایله ورنه کړه، د زور لار یې ونیوه او د پنجاب پوځي ځواک ته یې وا ک ورکړ چې په امرتسر کې د هغوی ځالې رنګې او په وسله واله توګه یې د بلوا مخه ونیسي. سیکانو دا غبرګون منلی و او د خپلو موخو له پاره یې ځان چمتو کاوه، دا مهال آدینه خپله سیاسي او پوځي ورتیا سیک ډلو ته ورانده کړه، سیکانو په خوښۍ واخیسته او د جګړو په ورځو کې یې د هغه کومانداني ومنله، آدینه وکړای شول چې سیک وسله والو لښکرو ته پوځي پیاورتیا ورو ببښي.

سپاه سالار جان خان وغونبتل چې آدینه له سرې لارې مات کړي، ځکه یې هغه د پنجاب د نایب الحکومه شاهزې تیمور له خوا د دوآبې (د تسلیج وبیاه ترمنځ) پر حکومت وټاکه او «لکي ځنګل» ته یې رسمي فرمان ورواستاوه. آدینه هم د ورې لپوه په ځېر په

---

------->> دولت خان سره د خواړو د کار کرونکي او زېرمه وال په توګه کار کاوه او وروسته ځېله شو.

نانک د خدای پرېووالي، د محمدي شرعې پرچارو له یوه کالبوت نه دار وا وتلو او بل ته یې پرنبوتلو، مزیو، دیوتاو د مخلوق په توګه د هندوانو پر دېرانو ګروهن و. حلول و بېوالي بوتان ویو تعبونونه او شراب ور د خوک غوښه یې نه منل او د ژوبو ږږول یې نه خوښول. تسبیح یې په لاس کې او زنار یې پرغاړه و. د پنجاب د جټانو (کلیوالو) په ژبه د نانک ټول شعرونه لاربسوونې او تر ډېره د خدای د جل جلاله د لویوالي او سپېڅلتیا او همدا راز د ځمکو او آسمانونو د بېوالي په اړه دي، نانک وايي: نبیان. ولیان. او تاران له ربنتینې بنده ګۍ نه یشپېږ تابه ته رسېدلي او هر څوک چې وغواړي له دې لارې یشپېږ پیدای شي. تر نانک وروسته یې ټګلار واوبنته او مریدانو یې دغو بنې خورل، په مذهب کې غلو او حلول ته ګروهېدل پیل کړل او ان د نانک لمانځنه یې ونیوه.

پر لسمه پېړۍ د نانک ګروهنو ډېر شول او پر یوولسمه یې بېلارې پیل کړه. د نانک وروستي له مذهبي لاربښوونې نه د سیاست ډګر ته ورننوتل او د سمو جوړېښتونو لکه د زېرمو، غورځلو، وسلو، سرتېریو، کارکوونکیو او ګرو د چارو پر سمبالتیا لګیا شول. ملګریو یې د خلیفه په لار کې بلهاري او دغه د زېرمې له پاره غلا خپله فریضه وګڼله. له هندې امله سیکان د جوړکې او ځواک خاوندان شول دا د دوی شمار و چې په غوره پېښه کې سره راټول شي؛ نذر ورکړي؛ په ګډه د موخې د لاس ته راوړلو له پاره (ګرو= خلیفه نانک) ته دعا ووايي او پرېکړه وکړي. دغې ګروهې د دوی په سترو سیاسي او پوځي ګامونو کې ځرګند اغېز لاره.

پر یوولسمه پېړۍ د نانک خلیفه «تیغ بهادر» د عالمګیر په امر ووژل شو او نور ډېر ملګري یې د بهادرشاه او فرخ سیر پر مهال ووژل شول.

سیکانو ان په دغه پېر کې د نانک په نامه پیسې چاپ کړې. پر دوولسمه پېړۍ افغان احمدشاه هم وټکول، تر احمدشاه وروسته سیکانو په پنجاب، کشمیر و پېښور کې پر منځګ وکړ او یو دولت یې جوړ کړ، تر هغې چې له انګریزانو سره مخامخ شول.

بیړه ومانه او په دوآبه کې یې پرخپل کار پیل وکړ، خو سپاه سالار چې دی لاهور ته راوغوښت؛ سرغړونه یې وکړه، سپاه سالار لښکر وبستلو ته اړ شو، آدینه مخکې د سیک په لښکرو دوآبه په ځانګړې توګه «جالندر» لوټلی و، تر دې وروسته د افغاني پنجاب حکومت و سیک بلواګرو ترمنځ جګړه ونښته، احمدشاه د خپل سپاه سالار پر پوځې پوهه دومره ډاډه و چې د هغه د هڅو له امله یې د سیکانو د چارو د پای هیله لرله او په خپله په کندهار پلازمېنه کې پر هېوادنیو کارونو بوخت و.

خو د هند دولت ګواښ تر پنجاب ستر و، د اورنګزیب د پاچاهۍ په پېر کې «سیواجي» نومي سړی د هند په سهیل کې د مرهټیانو د حکومت بنسټ کېښوو، د غه حکومت د اورنګزیب تر مړینې وروسته «چې د هندي بابریانو د کورنۍ پرځېدل پیلېږي»؛ په چټکۍ وده وکړه، ترهغې چې لا د برش کاله تېرنه وو چې مرهټه حکومت نېژدې د سهیلي هند ټاټوبو وزمی ونیو او نن یې پاچاه «بالاجي پیشوا» د ټول شمالي هند د نیولو خوب لیده، په د غه ترڅ کې غازي الدین د خپلې ونډې تر سره کول پیل کړل.

غازي الدین چې ډهلي ته د افغان احمدشاه د (۱۱۷۰) کال تګ پرمهال د پیسو د راټولولو په نامه په فرخ آباد کې اوسېده او احمدشاه ته یې له ورتګه سرغړاوه، افغانستان ته د احمدشاه تر راتګ وروسته یې د خپل پاخه منطق په مرسته احمدخان بنګښ وغولاوه چې د هند د سپاه سالارۍ په هیله له ده سره مرسته وکړي او هم یې د دکن مرهټه ځواکونه مرستې ته راوبلل چې د هغوی په مټ د هند وزارت و دولت لاس ته راوړي. غازي الدین د خپلو موخو د ګټلو له پاره د مرهټیانو حکومت وهڅاوه چې ډهلي او د نجیب الدوله او شجاع الدوله ټولې اړوند سیمې ونیسي او همدا راز یې تر اباسینه پورې ټول شمالي هند و افغاني ختیز ولایتونه د پرمختګ له پاره د وړسیمو په توګه ورته وښودې، سربېره پر دې یې د ډهلي په سهیل کې جټان او په لویدیځ کې راجپوتان چې د منځني هند ستر ځواکونه وو د غه کار ته وهڅول. د غازي الدین د سیاسي هلو ځلو لمن له یوې خوا تر «اوده» ولایت پورې او بل خوا په پنجاب کې د آدینه بېګ له لوري غځېده، خو په اوده کې یې د نواب شجاع الدوله د پوهې له کبله ماتې وخوړه.

پر (۱۱۷۲) کال «پیشوا» د شمالي هند د نیولو له پاره پنجاب ته د پلیو، سپرو او توپونو یو لوی لښکر راولېږه چې مشري یې د پاچاه ورور «راګونات راو» (راګوبا) پرغاړه لرله او پرغازي الدین سربېره، سندیا، هولکر، جنګورا او د مرهټیانو ځینې نور لویان یې هم غړي وو. د جټانو سیمې ته د نوموړي اوردو له راتګ سره سم، «سورج مل» د مخکېني ترون له مخې مرستې ته وروړ انګل راګوبا د ډهلي سیمو ته ترراسېدو

وروسته د «جنګورا» ترمشرۍ لاندې يو لښکر کېڼ خوا د اجمير سيمو ته ولېږد، دويم لښکر يې د «سندياد تا» تر مشرۍ لاندې مخ پر پنجاب وخوځېد او لويه برخه له راګوبا سره د ډيلي منځي ته روانه شوه.

دا مهال د مرهټيانو اوردو ټول منځنی هند وېرولي و او د جټانو او راجپوتانو ډلې چې د ډيلي په سهيل ولويديځ کې د دې سيمې سترې ځانګې وې له دوي سره په خوښه اويا هم د زور له لارې مرستې ته راوړاندې شوې، يوازې د هندوستان سپه سالار افغان نجيب الدوله د پلازمېنې ساتنې ته ملا تينګه کړه او د دېوالونو جګړه ونښته، ددغه لوی اوردو پر وړاندې د سپاه سالار ماتې څرګنده وه، په ځانګړې توګه چې لا د پنجاب چارې وېجاړې او سمدلاسه د افغانستان د مرستې لار بنده وه. سره له دې هم نجيب الدوله دومره مېړنی تينګار وکړ چې راګوبا ومنله که دی ډيلی خوشي کړي نو د کاله لوري ته لار به ورته پرانيستې پرېږدي. نجيب الودوله اړ و چې ډيلی پرېږدي او «سارنپور» ته لاړ شي. دده له وتو سره سم مرهټيانو ډيلی ونيو، څه موده وروسته اجمير ته لېږل شوی لښکر د ډيلی لوېې اډې ته راستون شو، خو پنجاب ته تللي لښکر ې خورا ناګار وچټک روان و، همدا چې سرهند ته راغی د افغاني ساتونکيو سرتېريو يو دېوال يې مخې ته راڅرګند شو، دا خوراکوچنی پوځي ډله وه چې سترګه ترې نه سوزېده، خو هغه کوماندان چې ددوی لارښوونه يې کوله د هغه پېړ يو زړور و کرکجن افغان و، دا سړی په سرهند کې داحمدشاه حاکم هماغه عبدالصمد خان ممن زی و چې په جګړه کې يې د مېړانې او زړوروتيا له امله «لېونی» باله. د عبدالصمد مغول و هندوان نه خوښېدل او داحمدشاه دراڅرګندېدو په لومړيو کې يې ناصر خان خوشي او له خپل ملي ځواک سره يو ځای شو.

په هر ډول، جګړه پيل، افغاني ډله تارومار او عبدالصمد چې توره يې په لاس کې وه دجګړې پر ډګر يرغمل شو.

په سرهند کې د آدينه ځواکونه د مرهټيانو هرکلي ته راورسېدل او يو ځای له ستلجه تېر شول، افغان سپاه سالار جانخان چې د دښمن خوځښت يې څاره، د مرهټي اوردو د ډېرښت او سيمه يز دښمن (سيک) دشته والي له امله اړ شو چې د بشپړو سوچه افغاني اوردو د چمتو کولو له پاره له لاهور نه پرشاشي، ځکه له شاهزې تيمور سره «چارمحل» و «زين آباد» ته لاړ. سنديا په بېړه لاهور ونيو او پر شاهزې پسې يې واچول، سپاه سالار چې داحمدشاه له خوا د «شيرجنګ» په نامه غږ ورته کېده، دلته يې خپله ټوله پوځي پوهه او وړتيا وکاروله خوبوه شو چې د شمېر لږ والی يې د ساتنې مخنيوی کوی، ځکه پښبور ته پر شا شو او د مرهټيانو بې سرو پښو اوردو له سنده تر اټکه د اباسين ټول کېڼ

او د ستلج سيمي كښتونه ونيول او منځني يې ورتالا كړل.

سنديا ، آدينه بيگ په پنجاب كې د مرهټيانو نايب الحكومه وټاكه، د دهم ومنله چې د كال به اووه مېليونه او پينځه سوه زره روپۍ د ماليو پرځاى د مرهټيانو خونديتي ته وركوي. د مرهټيانو يو جنرال «پټهيل» له يو شمېر سرتېرو سره په اټك كې د اباسين سر بريد ساتونكى وټاكل شو. بلواګرو سيكانو په پنجاب كې له هيڅ ډول ورانۍ نه مخ ونه ګرځاوه.

تر دې وروسته سنديا له ستلجه پورېووت او د سارنپور لورى يې ونيو ، ځكه چې غازي الدين له مرهټه جګړه مارو سره د نجيب الدوله جګړې ته تللى و او نجيب الدوله د انترېيدا روند د ګنګ په كڅ (سكرتال) كې د هغه مخنيوى كاوه.

سنديانو غوښتل چې د نجيب الدوله له ماتولو سره د هند كار يو مخيز پاى ته ورسوري. نجيب الدوله او افغاني روهيله سردارانو په لكنهو كې نوموړي موخې شجاع الدوله او د اودې نواب ته ورسولې او نواب يې پر اوده ولايت د مرهټيانو له يرغله ووېراوه او مرسته يې ترې وغوښته، شجاع الدوله هم چې راتلونكى ګواښ يې ننګېره او د مرهټيانو د مرستې ليكونه يې بې عبر ګونه پرې ايښي وو ، چټك له خپل پوځي ځواك سره د جګړې سيمې ته ورسېد او د نجيب الدوله لورى يې سم كړ. [1] تر دې وروسته د دواړو خواوو ځواكونه لږ څه انډول شول خو چې سنديا د غازي الدين څنګ ته راغى ، د مخامخ لوري تله يې سپكه كړه. له بده مرغه دا مهال پنجاب ته د احمدشاه د راتګ انګازې د مرهټه ځواكونو او افسرانو زړونه ولړزول او ښتې يې ورپېدېدې.

(۱) شجاع الدوله د نواب عبدالمنصور صفدرجنګ زوى او په اوده ولايت كې د هغه ځاى ناستى و او د دغه خدمت او نورو خدمتونو له امله چې د پاني پت په جګړه كې يې وكړل ډېر ژر يې د افغان احمدشاه له خوا د فرزند خان او د هند رستم بل نوم د هند د عظمى صدارت له مقام سره وګاټه، سربېره پر دې «كورې چكله» نومې سيمه وروبښل شوه. شجاع الدوله زړور و وېښ خو ډېر ځان خوښى سړى و ، له همدغه امله يې ځينې داسې كارونه وكړل چې د هند اسلامي دولت ته يې تاوان ور واړاوه. ده د خپل مشرتابه په پيل كې د خپل تره زوى محمد قليخان د حكومت پر سيمه «الله آباد» يرغل وروړ، هغه يې ونيو او وېې واژه. كله چې د بنګال مشر مير قاسم له كمپنۍ څخه ماتې وخوړه هندي شاه عالم و شجاع الدوله ته ورغى ، شجاع الدوله د هغه تر ساتنې او له انګرېزانو سره تر جګړې وروسته يې لا مله ميرونيو او شتمني يې ترې ګرنډه كړه ، شجاع الدوله تر ماتې وروسته دخپل هېواد د بيا نيولو له پاره د انګرېز ملګرتيا ته اړ شو ، خو د نورو اسلامي ولايتونو د ساتنې پرځاى يې د پياوړي افغاني ولايت (كټرا ) د نسكورولو تابيا وكړه او له انګرېزي سرتېرو سره يې يوځاى تر ډېره هغه ودان ولايت رنګ؛ نوميالى حافظ رحمت خان يې شهيد؛ فيض الله خان روهيله يې پسې واخيست او ټول هغه لورى كهول يې بندي او وشانه. جنرال جانكين له فيض الله خان سره پخلا و پوازې رامپور و څو كرچنې ځايونه يې ورته پرې ښوول. خو شجاع الدوله د كټرا سيمه ونيوه او په ناروغۍ كې اودې ته راستون او ډېر ژر مړ شو. څرګنده ده چې د هغه زوې ميرزا اماني اصف الدوله هم د پلار له ستر هېواده څه ګټه پورته نه كړه.

خو احمدشاه ده غږ دوو کلنو پېښو په ترڅ کې چېرته و او څه يې کړل؟ احمدشاه د و يلي د (۱۱۷۰) کال تر پايه وروسته نوی کندهار ته راغلی وچې پر ۱۱۷۱ کال يې د سيکانو او آدينه بېگ او اوربېده، هر څومره کړه احمدشاه د سيکانو راتلو نکی گړاېی اېکلاوه خو دا چې نوی کندهار ته را رسېدلی او د هرې پوځي چاودېږې اړلې او له يلې خوا د سپاه سالار جانخان پر پوځه او ورتيا د امن و سمدلاسه يې د پنجاب د چارو سمون هڅه ته پرېښوو، بل کال (۱۱۷۲) احمدشاه په خپله پنجاب ته تګ په پام کې لاره او سمدلاسه پر و يلي يې د مرهټيانو يرغل واورېد. د پوځي يانه بېرنۍ لاربښوونه يې وکړه. خو دا مهال يوې کورنۍ خراشينو نکي ستونزې پنجاب ته ددد د سملاسي تګ مخنيوی وکړ. دا لاڅه چې خپلسري وه چې د احمدشاه نايب الحکومه په بلوچستان کې پيل کړې وه. نصيرخان يو پوه سړی، زړور افسر او د احمدشاه يو سرسپارلی جنګيالی و چې د خراسان و هند په جګړه يزو هڅو کې يې د خپلې رښتينوالي آزموينه ورکړې وه. خو د پېښو له امله په شخصيتونو کې د ګروهې او سوڅي اوړون کېدونکی دی. نصيرخان هم د پنجاب د چارو د ګډوډی، د مرهټيانو د يرغل او د شاهزي تيمور و سپاه سالار د ماتې تر اورېدو وروسته خپله ګروهه واړوله او چمتو نه شو چې د ۱۱۷۲ کال په پوځي يانه کې چې احمدشاه پنجاب و هند ته په پام کې لاره؛ ګډون وکړي. نصيرخان د خپل دغه کار و منځګړتيا آر له مخې د شپږ زره بلوچ لښکر د نه لېږلو په اړه احمدشاه ته لاسوند وبښنه وړاندې نه کړه او لا يې د احمدشاه د يوه پوځي افسر پر وړاندې چې ددې پېښې د چاجلوله پاره له کندهار درباره لېږل شوی و، د دښمن چلند پيل کړ او د کلات په (۶۹) ميلی شمالي سيمه کې «مستونګ» ته نږدې يې له ډېرو سرتېرو سره د احمدشاه دراليږلي افسر مخه ونيوه. نوموړي افسر د جګړې پازمن نه و او پرته له يوې ډلې بدرګې پوځيانو بل څه ورسره نه وو. خو بيا يې هم ونه غوښتل چې بې جګړې وتښتي. د نصيرخان د ګنيو او چمتو لښکرو پر وړاندې د دغه افسر ماتې هرو، مرو وه. تر يوې جګړې وروسته افسر شاته ستون شو. نصيرخان د خپل دغه چلند د پايلې د څرګندېدو له پاره سمدلاسه په مستونګ کې مېشت شو.

احمدشاه ددې پېښې تر اورېدو وروسته غوسې ونيو او له شاهي دوولس زريز لښکر سره له کندهاره وخوځېد. نصيرخان په مستونګ کې ناڅاپه د احمدشاه له بريد سره مخامخ شو. دا زوړ پوځي چې په لومه کې لوېدلی و، خپل ټول ځواک يې په جګړه کې وکاراوه. خو په زور مات او د کلات خواته په ناسمه ستنېدنه اړ شو. احمدشاه نصيرخان دمې ته پرې نه ښوو؛ په بېړه يې وڅاره او په کلات کې يې ښار بند کړ. نصير چې د پنجاب و هندوستان په ښځړو پوه و، دا يې منلای نه شوه چې احمدشاه به د هېواد ګردې ارزښتمنې چارې پرېږدي او د کلات غوندې بې ارزښته سيمه به تر ډېره چاپېره او يو مخيزه کړي. ځکه يې په بشپړ زغم پرسا تنه ټينګار کاوه. د کلات د کلا کلکوالي چې درون پوځي ځای ګڼل کېده هم دده له ټينګار سره

مرستـه کولـه.

احمدشاه په خورا سره سینه له ښاره راتاو شو او د یوالي جګړې یې پیل کړې، خو دا چې د پنجاب د ستونزې له امله ډېر اندېښمن و، له همدغه ځایه یې یوه کوچنۍ ډله سرتېري د نورالدین خان تر مشرۍ لاندې د پنجاب کرښې ته ولېږل او هڅه یې وکړه چې په دې توګه د شاهزي تیمور وسپاه سالار زرونه راجګ او سیکان و مرهتیان وډار کړي.

نصیرخان د احمدشاه له ښکاره سوړوالي نه وننګېر له چې له هغه سره هېو د پنجاب و هند اندېښنه نه شته او چې کلات یې نیولی نه وي بېوې خواته به هم لاړ نه شي. نصیر خان چې د احمدشاه پرجګړه یزو آرونو پوهېده، وېره یې لرله چې که احمدشاه په کلات کې وځنډېږي هرو مرو به یې مرستندوی ځواکونه له کندهاره ملګرتیا ته راشي، هله نو د کلات نیول او دده ځپل هرو، مرو دي، ځکه نو نصیرخان هڅه وکړه چې د احمدشاه په بدرګه کې دخپلو ملګریو افسرانو له لارې د سولې وړاندیځ مخکې کړي. نصیرخان په دغه وړاندیځ کې ومنله چې د پخوا غونډې به په بلوچستان کې ځان د احمدشاه نایب الحکومه ګڼي او په بهرنیو جګړو کې به له بلوچو لښکرو سره د افغاني اوردو د یوې څنډې په توګه برخه اخلي.

احمدشاه نصیرخان د هغه د پخوانیو هڅو او خدمتونو له مخې وبابښه؛ د هغه وړاندیځ یې ومانه او په خپله شمال خواته وخوځېد. (۱)

---

(۱) دا په بلوچستان کې د افغانستان دولت پر وړاندې د نصیرخان وروستی سرغړونه وه چې بیا نه ده وکړه او نه یې وروستنیو. نصیرخان تر دې وروسته چې احمدشاه ژوندی و او د تیمورشاه پرمهال چې دی ژوندې و، له مننې یې سرونه غړاوه. دزمانشاه پرمهال (۱۲۰۷-۱۲۱۷ هـ) چې د افغانستان دولت واوړېدل چې د نصیرخان یو وراره د هغه د زوي محمود پر وړاندې لوېي او حکومت غواړي، د اشرف الوزرا شاه ولیخان د زوی مختارالدوله شیرمحمد خان تر مشرۍ لاندې یې بلوچستان ته یو پوځي لښکر ولېږه؛ سرغړوونکي یې کلکوګواښ او محمود یې پر نایب الحکومه توب ځای پرځای کړ. محمود د کابل دربار ته له شپږ زریز لښکر سره (د احمدشاه مهال له آر سره سم) راغی او څه موده وروسته خپلې دندې ته ولېږل شو.

پر (۱۲۲۲) کال چې شاه شجاع له کندهاره د بلوچستان پر لار سند ته لاړ، بیا یې محمود له خپل ورور مصطفی، خپلې مور او شپږ زریز لښکر سره هرکلي ته راووت؛ د درناوي څرګندونه یې وکړه او ډالۍ او تاکلي سرتېري یې وړاندې کړل. پر ۱۲۵۵ کال چې هند دولت افغانستان ته لښکرې راولېږلې، بلوچو یې مخه ونیوه او برید یې پرې وکړ، خو په هغه جګړه کې چې انګرېزانو په کلات کې وکړه، له دې امله چې افغانستان کورنیو شخړو نېولی و او بلوچستان ته یې لاس نه رسېده، نو د بلوچستان والي مهراب خان ووژل شو. دا هماغه داستان دی چې قاسم علي د خپل منظوم کتاب یوه برخه له شاعرانه اغراق او ګڼو تېروتنو سره ورته ببله کړې ده. «کتلی شئ: د کابل جګړې، پېیلې (منظومه) چې پر ۱۲۶۰ کال ویل شوې او پر ۱۲۷۲ کال په اګره کې چاپ شوې»

انګرېزانو پر ۱۸۵٤ کال د محراب خان له زوی نصیرخان سره مخامخ تړون وکړ او تر ده وروسته یې زوی محراب د بلوچستان والي شو. د بلوچستان والي پر ۱۸۷٦ کال په کلات و کوېټه کې د انګرېزي هند د پوځیانو مېشتېدل، یو استازی او د اورګاډي پټلی او ټېلېګراف ومنل او په پای کې پر ۱۸۸۳ کال بلوچستان، برېتانوي بلوچستان شو

دا مهال ۱۱۷۲ هـ کال پای ته نېږدې و. خو نورالدين چې له اباسينه راتېر شو او پنجاب ته د احمدشاه د راتلو انګازې ولولې جوړې کړې، ده وکړای شول چې بې خنډه د چناب کڅ ته ورسېږي او «وزير آباد» ته ورکوز شي، ځکه چې ده د احمدشاه له لارښوونې پرته د مرهټيانو مخې ته وروتل ور نه ګڼل، خو احمدشاه کندهار ته د بلوچستان تر لاره تېر او ورو سته د بولان له تنګې څخه سند ته ورننووت او يو مخيز مخ پر شمال د اباسين سيند کڅونو ته وخوځېد، له پښتونو يې سپاه سالار وشاهزی تيمورشا د هغوی له ملو سېن تېر يو سره له ځان سره کړل؛ له اټکه واوښت او په وزير آباد کې له مخکينی ډلې سره يو ځای شو. دا مهال د احمدشاه د اردو شاتنې ځواکونه د کندهار نيم پوځي ډلې وې چې ده ده له لارښوونې سره سم ورو سته له کندهاره راخوځېدلې وې.

د مرهټيانو پوځي سربريد ساتونکي د احمدشاه د راخوځېدو د خبر ترا اورېدو وروسته يو مخيز د اندس له کڅونو لاهور ته پر شا شول. لاهور د مرهټي «سابا» په لاس کې و چې پر ۱۱۷۲ کال يې د آدينه تر مړينې وروسته د هغه ځای ونيو. سابا هم د لاهور له ساتونکيو سره يو سره د سنديا له ځواکونو سره د يو ځای کېدو له پاره، پر ستلج واوښت؛ سيکان هم پر ځای ساړه کېناستل او د پنجاب د بلوا لړه په خپله غلې شوه.

احمدشاه له خپل ټوله لښکر سره چې د رېګوني ټولګي يې د برشو زرو جنګياليو ته رسېدل د ۱۱۷۳ د صفر پر مياشت د پنجاب تر «قطب درې» مخکې لاړ او له هغه ځايه يې د سيند تر تېرېدو وروسته تر «جمنا» اخوا د «سارنپور» لارونيوه.

هندي مرهټيان چې پنجاب ته د احمدشاه په راتګ وپوهېدل، د پوځي يانه سمون يې پيل کړ، سنديا او غازي الدين چې په سکرتال کې د افغان نجيب الدوله پر کلابندۍ او د اودې له نواب شجاع الدوله سره پرجګړه لګيا وو، په بيړه يې له لوري سره د سولې خبرې پيل؛ سملاسي اوربند ټينګ او يو تر بله بېل شول. غازي الدين مخ پر ډېلي او سنديا د مرهټيانو د لومړي پوځ د کوماندان په توګه د احمدشاه د مخنيوي له پاره پنجاب ته روان شو.

غازي الدين چې ډېلي ته ورسېد د هندپاچاه دويم عالمګير عزيزالدين يې په ځانګړې توګه له منځه يوړ او خپل ماما د عالمګير وزير نظام الدوله يې هم وواژه، پر ځای يې د اورنګزېب لمسی د کام بخش زوی «محی السنه» تش په نامه پر پاچاهي وټاکه او د وزارت تر نامه لاندې يې د هند دولت د چارو واګې په خپل لاس کې ونيول، تر شا يې د

مرهټیانو دویم پوځ د «هلار» ولکر «تر مشرۍ لاندې راوخوځېد او په دهلي کې غازي الدین ورسره یوځای شو ولي وروسته یې ونيو، راګوریا هم څه موده وروسته له مرهټیانو سره یوځای شو، ته راستون شوی و.

احمدشاه په سارنپور کې وچې سپاه سالار نجیب الدوله او د کترا د سیمې مشر سعدالله خان روهیله[1] له نورو سردارانو سره ، لکه: حافظ الملک حافظ رحمت خان او

(۱) سعدالله خان د افغان محمد علي خان روهیله زوی او د پوځ خانګي اورند دی. نیکه یې د فرخ سیر په مهال د افغانستان له خوځنګ نه کټهر او لایت (مراد آباد ، بهدراس، بریلي) ته راغلی. دغه کټهال لویان دوه ورونه وو چې یو شاه عالم او بل حسین خان نومېده. شاه عالم د داود وحافظ رحمت خان په نومونو دوه زامن او حسین خان د دوندي خان په نامه یو زوی لاره. داود د کماون د راجا تر سپاه سالارۍ ورسېد او په پای کې د هغه په لاس ووژل شو. د داود زوی علي محمد نومېده چې د سپاره تولیشلو په رتبه د مراد آباد د نایب الحکومه د لکتهور د عظمت الله خان قاضي زاده په مدرګه کې ونیول شو او څه موده وروسته یې له دهلي دربار سره اړیکي ومونډل. د علي محمد روټیا دوې لاځل شوه چې په شاهي افسرانو کې وشمېرل شي. ده په هغه جګړه کې چې د بارهه ساداتو د پلو اکرو پر وړاندې یې وکړه ، د هند صدراعظم قمرالدین خان له خوا یې د «نواب» پلنوم او په هغه زرینه رتبه واخیسته. څه موده وروسته وزیر دې ګرهه کړ او د دواړو خواوو ترمنځ جګړه ونښته. خو علي محمد خان د وزیر د سپرمنې «شولاپرې» په منځګړتیا سوله وکړه او د وزیر زوي میرصدرالدین یې زوم شو. علي محمد خان بیاورې سرتیري راټول او د پلار وژونکي د کماون راجا یې مات او باج ورکولو ته یې اړ ویست.

د علي محمد خان د حکومت منځنۍ انواله وه. په هغه لانجه کې چې د هند د سپاه سالار ابو منصور صفدر جنګ له سره پېښه شوه ، د هند پاچاه ، سپاه سالار و صدراعظم په بنګده کې ، د علي محمد خان جګړې ته وروړاندې شول ، په پای کې شاه له علي محمد خان سره سوله وکړه ، دی یې په سرهند کې استوګنې ته اړ او کترا ولایت یې چې د علي محمد خان د حکومت سیمه وه د عظمت الله زوی فریدالدین ته ورکړ .

افغان احمدشاه چې لومړی ځل پر ستلج ورواوښت ، علي محمد خان له دغو شیبو نه ګټه واخیسته او له سرهنده کترا ته راغی ، د هغه ولایت ټولې سیمې ، لکه: دارانګر ، مراد آباد ، سنبل ، بریلي ، شاهجهانپور او نورې یې ونیوې او خپلواک حکمران شو .

علي محمد خان هوښیار ، جنګیالی او مدنیت روزونکی سړی و ، دا نوالي ښار ده ودان کړی و چې له شجاع الدوله سره په جګړه کې ړنګ شو .

علي محمد خان د ۱۱۶۲ کال په شوال کې مړ او زوی یې سعدالله خان پرځای کېناست. د علي محمد خان نور زامن عبدالله ، فیض الله ، محمد باز ، الله یار و مرتضی خان نومېدل. علي محمد خان ، حافظ رحمت خان د وزیر ، دوندي خان د سپاه سالار ، ملا سردار خان د وسله تون د مشر و فتح خان د میرسامان په توګه ټاکلي او خپل زامن یې هغوی ته سپارلي وو چې د ده ترمړینې وروسته د کترا په افغاني حکومت کې شخړه جوړه نه شي .

مؤرخ مرتضی حسین ، هندي محمد شاه ته د علي محمد خان د ورتګ پر ورځ و او په خپل تاریخ «حدیقة الاقالیم» کې یې بنه داسې راښیي: د علي محمد خان جګه ونه ، منځنۍ پړې ، سپین پوستکی توره درې ګوتې اوږده ږیره ، تر شوندو خړبیلي برېتونه ، رانجه کړې سترګې او سپین کالي یې وو ، خورا درون و ښاغلی ښکارېده چې پر مخ یې د ډار و غم نښه نه برېښېده .

سعدالله د پلار پرځای تر ناستې وروسته لومړی نوی حاکم قطب الدین چې له دهلي یې رالېږلی و ، د جګړې پر ډګر وواژه ، دویم د فرخ آباد حاکم قایم جنګ بنګښ چې یې لامله یې کترا ته لښکر راوستی و ، د سعدالله پر وړاندې په جګړه کې مړ شو ، دریم د هند سپاه سالار صفدر جنګ یې چې فرخ آباد ته یې د قایم جنګ د زوی احمدخان پر وړاندې لښکر رالېږلی و : له منځه یوړ . دده مشران ورونه عبدالله خان و فیض الله خان چې د کندهار له درباره کترا ته راغلل« دوی د احمدشاه پر لومړي تګ له سرهنده کندهار ته ورسره تللي وو » د کترا مالیې پر دربېو اړو مشرانو ورونو وویشل شوې چې هر یوه ته د کال یو میلیون و درې سوه زره روپۍ وټاکل شوې. ---------››

زوی یې عنایت خان، دوندي خان او قطب خان د لسو زرو افغاني سرتېرو په ملتیا احمدشاه ته راغلل. خو شجاع الدوله د خپلو ځاني چارو له پاره اودې ته تللی و. احمدشاه له سارنپوره مخ پر ډېلي وخوځېد، سپاه سالار جانخان او شاهزي تیمور چې د مرهټیانو له لاسه یې زړونه ډېر داغدار شوي وو، له لسو زرو سرتېرو سره د مخکښې ځواک په توګه وخوځېدل.

د ډېلي د لارې په اوږدو کې د سندیا تاځواکونه چې څه د پاسه اتیا زره تنه وو او افغاني سرتېرو ته ناست وو، جګړې ته را ورانده شول. سپاه سالار جانخان پر ګواښناک یرغل پیل وکړ، سندیا هڅه وکړه چې ټینګ شي خو افغاني ځواک یې زړه ورسوري کړ او د ډېلي ته نږدې تر «بدني د ګره» شاتګ ته اړ شو. جګړه لا روانه وه چې د احمدشاه اوږدو راورسېد او د ډېر ژر یې سندیا کلابند کړ. په رښتیا چې سندیا زړور افسر و او په کلکه یې ساتنه کوله؛ په خپله له سرتېرو سره د جګړې پر ډګر پلي شوی او تر وروستۍ سلګۍ پورې یې توره ووهله، خو څه ګټه یې لرله چې احمدشاه د اورد لمبو غونډې له څلورو خواوو چاپېر کړی و؟ د جګړې پایله د مرهټیانو او سندیا تا د اوردو تولو ژنه شوه، په داسې ډول چې یوازې څو زره و تښتېدلی شول، او هغه تښتېدلي هم تر ۲۵ میلو پورې وژل شول. دا لوی بری د ۱۱۷۳ کال په جمادی الاخر کې پېښ شو.

غازي الدین و جنګوراو چې په ډېلي کې د مرهټیانو د اوردو شاتني وو، د لومړي لیکي د تارومار بدو تر اورېدو وروسته یې بې د یل وځنده ډېلي خوشې او مخ پر سهیل د

---

------ ›› سعدالله خان د پاني پت په جګړه کې د احمدشاه په ملتیا غوره هڅې وکړې او په خپله پر ۱۱۷۵ کال له نړۍ نه لاړ، ورونه یې عبدالله خان، مرتضی خان والله یار خان لا پخوا مړه شوي وو. تر سعدالله خان وروسته مشري فیض الله ته پاتې شوه، څه موده وروسته د دې کورنۍ نومیالي لویان سپاه سالار دوندي خان، وسله مشر ملاسردار خان و میرساماان فتح خان هم مړه شول او د فیض الله خان و وزیر حافظ رحمت اداري چارې درنې شوې، دامهال شجاع الدوله د کمپنی له سرتېرو سره پر کترا وروډانګل او تر جګړې وروسته ماتې خوړلی فیض الله خان «کماون خان» ته لاړ او حافظ رحمت د جګړې پر ډګر شهید شو.

وروسته تر هغې چې شجاع الدوله د کترا ودانۍ ړنګې او یو لوی کهول یې یرغمل وځپلی و، او دې ته راستون او څه موده وروسته مړ شو.

خو حافظ الملک حافظ رحمت خان پر سیاسي چارو سربېره یو پوه سړی او د ښو اخلاقو خاوند و؛ په پښتو او پارسي یې شعر هم وایه؛ ارزښتمن کتابتون یې لاره او د ډېر زامن یې دده د غوره روزنې تر سیوري لاندې شاعران و پوهان شول، لکه: نواب الله یار خان، نواب محبت خان، نواب مستجاب خان، نواب غلام مصطفی خان.

افغان احمدشاه د حافظ درناوی کاوه، خپل دوه لوی دښمن غازي الدین و سورج مل یې دده په غوښتنه وبښل او د پاني پت تر جګړې وروسته یې «اټاوه» سېمه ده ته وروښله. حافظ د ژوندانه پر (۶۷) کال د (۱۱۸۸) د صفر پر (۱۱) په میرانپور کې د جګړې پر ډګر شهید شو. د ژوند پېښو مینه وال یې د سید الطاف علي «د حافظ رحمت خان ژوند» نومی کتاب چې د دوان په ښه پر ۱۹۳۳ کال چاپ شوی، کتلی شي.

جټانو سیمې ته وتښتېدل. خو د مرهټیانو دويم لښکر د جمنا کیڼ اړخ ته په مکندره کې مېشت و.

احمدشاه له «بدني» څخه «نارنول» ته وخوځېد او د رسالې کنډکونه يې چې څه د پاسه پينځلس زره سپاره يې لرل د پلازمېنې د ځواکونو د کوماندان شاه پسند خان اسحق زي ترمشرۍ لاندې د مرهټيانو د دويم لښکر ځګرې ته ولېږل، نوموړی جنرال د شپې په تياره ډېلي ته ورسېد او پر دويمه شپه له جمنا نه تېر او په مکندره کې يې ناڅاپي شبخون پيل کړ، په څو گېنټو کې د دښمن ټول اوردو تيت او ووژل شو او مشر يې «هولکر» له څو سوو سپرو سره وتښتېد. سمدلاسه د مرهټيو ځرک پاتې نه و خو لاتر اوسه يې ځواکمن دولت تر شا ولاړ و.

احمدشاه د دښمن ترماتې او دهغه داوردو د زېرمو اولوښيو ترنيولو وروسته ډېلي ته ورننووت، همدا چې د راجپوت مشران له پېښې خبر شول، ژر يې احمدشاه ته خپلې ډالۍ او غوښتنې ورولېږلې، په دوی کې د «جيپور» و «مارواړ» راجان تر ټولو لومړي شول، جټان هم غلي وو اود مرهټيانو د ملگرتيا يې څه نه ويل، خو احمدشاه غوښتل چې د جټانو غوړونه تاو کړي نو يو لښکر يې ددوی سيمې ته ولېږه نوموړی تر «آرام گده» پورې پرمخ لاړ او دا پوځي کلا په شپاړسو ورځو کې له ټولو زېرمو او لوښيو سره ونيول شوه. دامهال غازي الدين وسورجمل دواړه له خپلو کړو پښېمانه شول، او له احمدشاه نه د بښنې غوښتلو له پاره يې د «حافظ رحمت خان» لمن ونيوه، احمدشاه هم دوي وبښل او په خپله له اوردو سره يوځای د جمنا له ښي اړخ نه کيڼ ته واوښت او د (۷۳) ميلو پر واټن يې په انوپ ښار کې اډه جوړه کړه. احمدشاه له ډېلي نه د وتو په ترڅ کې هلته د يعقوب علي خان باميزي او نواب محسن الملک تر مشرۍ لاندې دوه ساتونکي پرېښوول.

احمدشاه چې په انوپ ښار کې و د اودې ولايت راجا او د ډېلي د توپونو کوماندان د نواب صفدرجنگ ابومنصور خان زوی نواب شجاع الدوله بهادر او احمدخان بنگښ[1] له فرخ آباد څخه له لسو زرو سرتيريو سره د افغاني اوردو ترڅنگ ودرېدل.

---

(۱) اميرالامرا بخشي الممالک غالب جنگ احمدخان بهادر بنگښ افغان د غضنفر جنگ محمد خان بنگښ زوی دی، لومړی يې پلار د هند په اوردو کې سپور بلو کشمر و، په هغه جگړه کې چې د شاهزي فرخ سير په ملگرتيا يې د معزالدين د زوی شاهزي اعزالدين پر وړاندې وکړه د غضنفر جنگ بل نوم، اووه زريزه رتبه او د شمس آباد، بهوج پور و مراد آباد جاگير يې تر لاسه کړل. د هندي محمدشاه پرمهال دا له آباد نايب الحکومه او د لويو سريو په ډله کې شو. ------>

احمدشاه لومړنی نواب چې د هندوستان له لویو سړیو څخه و او په «سکرتال» کې له مرهټیانو سره جګړې ته چمتو شوی و، د بر و نازاوه، وروسته احمدشاه ته د کندهار لس زریزې نیم پوځې دلې د عطا محمد خان، کریمداد خان و ځو تنو نورو ترمشری لاندې راورسېدې؛ دامهال د احمدشاه ټول اوردو شپېتو زرو ته رسېده.

پانیپت:

د مرهټیانو د لومړي اوردو له ماتې نه لا څلور میاشتې تېرې نه وې چې دویم ځل یې

---

-------» محمد خان خپل پخوانی دښمن راجا چترسال د هغه له زرګونو وسله والو سره مات کړ، بیا د مالوې نایب الحکومه و تاکل شو او دوه کاله وروسته د ډېلي ته راوغوښتل شو. د خوراساني نادرشاه د یرغل پرمهال د هند پاچاه د ارګ ساتونکی شو، نادر چې بېرته ستون شو محمد خان فرخ آباد ته لاړ او هماغلته مړ شو.

محمد خان پوه، جنګيالي او مدنیت پال سړی و، ده لکه څرنګه چې ځان له بلو کشمیري څخه د امارت ځوکۍ ته ورساوه، همداسې یې خپل اړوند ولایتونه د هند د ودانو ولایتونو پرکچه ودرول. محمد خان د بهوجپور پر سیمه او د کنګ پر غاړه د خپل پخواني مشر «فرخ سیر» په نامه «فرخ آباد» او د خپل زوی «قایم خان» په نامه «قایم ګنج» ښارونه جوړ کړل، همدا راز یې ورو، ورو د کول یا شاپور له بریده تر سل و پنځوس میله واټن پورې د محمد آباد، دریا ګنج، خدای ګنج، نبي ګنج، یاقوت ګنج، شمشیر ګنج، کاسګنج او د خپلو زامنو په نومونو داسې نور ګن شمېر ښارونه ودان کړل.

خو د محمد خان ځای ناستي مشر زوی قایم جنګ قایم خان د پلار ورتیا نه لرله او په هغه یې لامله جګړه کې چې د کترا ولایت له مشر افغان سعدالله خان روهیله سره یې وکړه په خپله ووژل شو؛ د شپږو میلیونو روپیو په شاوخوا کې شتمني یې د هندي احمدشاه د استازي او سپاه سالار ابومنصور صفدرجنګ له خوا ونیول شوه او ګرد کهول یې الله آباد کلا ته بندي بوتلل او وژل شو. له دغه کهاله څخه یوازې د محمد خان ناروغ زوی احمدخان وژغورل شو.

احمدخان د پلار ربښتیني زوی و او د مهال له موندلو سره سم یې د افغان رستم خان شمس آبادي په مرسته پر پلارني سیمه ورودانګل، د صفدرجنګ نایب راجاه نولرای «یې وواژه او ولایت یې ونیو. صفدرجنګ د ډېلي له اوردو او جتانو سره جګړې ته وراندې شو، رستم خان ماتې وخوړه خو احمدخان په خپله د صفدرجنګ د اوردو پر زړه یرغل وروړ او د هغه پنځه زریز ساتونکي او خولي پرسر لښکر یې تار و مار کړ او په خپله هم د پیل پر شاتیې شو.

دښمن په کړاو مات شو او احمدخان سمدلاسه د صفدرجنګ منځي لکهنو ونیو او بل لښکر یې الله آباد ته ولېږه، د بنارس راجاګان «بلوند سنګ» و «میرتهي پټ» یې هم چوپړ ته راغلل.

د هغو تودو اوردو جګړو په ترڅ کې چې وروسته د احمدخان بنګښ و صفدرجنګ و مرهټیانو ترمنځ وشوې، سره له دې چې احمدخان خپل نیم هېواد بایلود، خو د دویم عالمګیر پرمهال یې د امیرالامرا، بخشي الممالک و غالب جنګ بلنومونه وګټل. د پاني پت په جګړه کې احمدخان د افغان احمدشاه په ملګرتیا څرګندې تورې وکړې او پرځای یې د احمدشاه له خوا دده نیم هېواد چې د ملهارا او مرهټیانو لاس ته ورغلی و بیرته ورکړ شو.

احمدخان بنګښ د غوره ځانګړتیاوو او اوچتو اخلاقو ښه بېلګه وه، د مړانې، ورکړې او ښې ګروهې په اړه یې په تاریخ کې هینبنده کیسې لیکل شوې. تر مړینې وروسته یې زوی مظفر جنګ د پلار ځای ناستی شو او له هندي شاه عالم نه یې د هغه بلنومونه له مرغلینې جوغې، پګړۍ او تورې سره واخیستل.

له سهیله شمال ته لویه لښکر لېږنه پیل شوه، دد غه اوردو لوی کوماندان د مرهټیانو د پاچاد بالاجي پیشوا د ترور زوی «سیداشیو بهاو» نومېده چې په «باوجي باپادو» پېژندل شوی و، د لښکر ستر غړي یې: د بالاجي پیشوا زوی «چې د هندوستان پر پلاز د کېناستو له پاره لېږل شوی و» ، «منځکې یاد شوی» «ملار اولکر» او د «ابراهیم خان» په نامه یو گاردي دکني مسلمان او څو نور وو.

ګڼو افغاني او هندي مؤرخانو د دغه اوردو شمېر تر سلو زرو لږ نه دی بښودلی.(۱)، یو اوسني هندي لیکوال یې شمېر له دري سوو تر نه سوو زرو ښيي.(۲) یو بل اوسنی هندي لیکوال یوازې د دغه اوردو د بشپړو پوځیانو شمېر سل زره ټاکي.(۳) عبدالکریم خان په مبالغې سره د نوموري اوردو د توپونو شمېر له پېرنګي توپ ویشتونکیو سره یو زرو پنځه سوه توپونه، د پېرنګیانو غونډې په څنماتې توپکو وسله وال دوولس پلي زریز ګنډکونه، دوولس زره «راوت» او څو زره یې «پټه باز» شمېرلي، ټول اوردو یې بې شمېره او د «مهابارت» تر جګړې وروسته یې ساري ګڼلی دی.

سلطان محمد، د مرهټیانو په اوردو کې د انګریزانو دوولس زره پلي، دوولس زره سپاره او زر توپ ویشتونکي مني، لکه مرتضی حسین چې وایي: د مرهټیانو اوردو یو ګرځنده لوی بازار لاره چې غوړي پلورونکي، بنجارګر، رخت پلورونکي، جولاګان، کولالان او داسې نور په کې وو، همدا راز کارکوونکي لګښا وو او د ډول، ډول شنو بوټیو ګلدانی یې له یوه ځایه بل ته وړي راوړې. د پیورو او باروړونکیو غواګانو شمېر یې تر زرګونو اوښت او څو زره آسونه او پیلان یې لرل. دا رښتیا ده چې په دې جګړه کې انګریزانو د مرهټیانو بری نه غوښت، ځکه چې ددوی له خوا د ټول هندوستان نیول په بنګال ومدارس کې د انګریزانو نوې ودانې لـه ګواښ سره مخامخ کولې، خو دا چې د مرهټیانو ځواک خورا ډېر او تر افغانانو یې بری هرو، مرو ښکارېده، انګریزانو د توپ ویشتونکیو افسرانو او پوځي ډلو له پلوه د مرهټیانو مرسته وکړه چې د هغوی تر بري وروسته لږ ترلږه د انګریزانو اوسنی ګټې خوندي پاتې شي. دا په تاریخ کې لومړی ځل و

(۱) لکه سلطان محمد افغان ۱۳۳ - ۱٤۰ مخونه، ابن محمد امین ۱۲٤ -۱۲۹ مخونه.

(۲) کتلي شئ: د حافظ رحمت خان ژوند، د بی ای سید الطاف علي لیکنه د هند چاپ ۱۹۳۳ کال ۹۱-۱۱۲ مخونه.

(۳) د هند لنډ تاریخ، د سیدابوظفر ندوی لیکنه، د هند چاپ ۱۹۳٤ کال، ۱۸٤ مخ.

چې افغان و انگريز «که څه هم په ناسيده توگه» د جگړې په ډگر مخامخ شول. جټانو او راجپوتانو هم د مرهټيانو خوا ونيوه، په پای کې دغه بې پايه اوردو د ۱۱۷۳ کال په وروستيو د ډيلي سيمې ته ورگډ شو. د جټانو له سيمې نه د تيريدو په ترڅ کې غازي الدين او د جټانو مشر سورجمل د «سداشيوبهاو» هرکلي ته ورووتل او ډيلي ته ورسره لاړل، خو داځل د غو دواړو له احمدشاه سره د مخامخيدو مترونه لرله. د افغان له بري او غچ اخيستنې نه يې ګلکه ويره وه، همدا ويره يې د مرهټيانو له بري نه د مرستې د نه کولو له امله هم لرله، ځکه نو دواړه په څېر منځکې تلل او د غوښې په ښکرې له پاره يې لارې لټولې.

په هر ډول، د جمنا او به چې د برسات (اوربشت) له امله جگې شوې وې، اوس د افغان و مرهټې اوردوگانو د مخامخيدو خنډ وې.

سداشيوبهاو د ډيلي ښار ورچنې اده جوړه کړه او د ابراهيم گاردي، جنگوزاو، او هولکر لښکرو د ذي الحجې په (۹) د پلازمېنې د ډوالي جگړه ونښلوله. د يعقوب علي خان افغانې افسران ساتنې ته راپورته شول، خو د دښمن د پروالي تر دوو ورځو په غلونو او توپ ډزو وروسته ځانسپارنې ته اړ ويست. يعقوب علي خان د هغې وينا له مخې چې له مرهټيانو سره يې کړې وه، بې ځنډه په بېړۍ له جمنا را پوربووت او د احمدشاه چاونۍ ته راغی. غازي الدين وسرج مل د پام له مخې په دې جگړه کې ورگډ نه شول او وروسته تر هغې چې سداشيوبهاو د ذيحجې په (۱۹) ډيلي ته ورننووت په تالا يې لاس پورې کړ: د «ځانگړي ديوان» سپينزرې چت يې راوسپړه او د شيخ نظام اوليا، قدمگاه، او محمدشاه هندي د زيارتو سپينزرې لوښې يې ويلې کړل.

سورجمل و غازي الدين داسې لارجوړه کړه چې د سداشيوبهاو په خوښه د سريو او لوښو د برابرولو په نامه د جټانو سيمې ته لاړل، خو بيا د مرهټيانو اوردو ته راستانه نه شول سره له دې، په پای کې سورجمل د افغان نجيب الدوله له لاسه د جگړې په ترڅ کې ووژل شو او خپل ځای يې زوی جواهر سنگ ته پرېښوو.

سداشيوبهاو د نوي ۱۱۷۴ کال د دويمې مياشتې (صفر) په پای کې له ډيلي نه ووت او ښار يې «ناروشنکر برهمن» ته وسپاره. سداشيوبهاو غوره وگڼله چې له احمدشاه سره تر مخامخيدو وړاندې د ډيلي په (۶۰) ميلۍ کې «د گنجپورې» پوځي کلا

ونيسي، له همدې امله «قطب دري» خواته وخوځېد، دا پوځي کلاد هماغه زړور افسر عبدالصمد خان ممن زی تر لاس لاندې، د يوه افغاني لښکر چاوڼی وه.

عبدالصمد خان د سرهند په جګړه کې تر يرغلمېدو او پرمرهټيانو باندې د احمدشاه ترلومړي بري وروسته د دښمن له لاسه خوشې او اوس د ګنجپورې چاوڼۍ کوماندان و چې د جمنا ښي لوري ته يې د افغان پوځي منځي ساتنه کوله. د سيدا شيوبهاو اوردو د تورسهل غوندې راشپوه شو او د ربيع الاول پر (۷) د عبدالصمد خان او د هغه د مرستيال قطب الدين خان افغان روهيله له کلک ټينګار سره مخامخ شو. د مرهټيانو توپونو د کلا برجونه ټينګ وويشتل او پلې يې ورننوتل، ښکاره ده چې عبدالصمد خان له خپلې ډلې سره د زرګونو دښمنو ترمنځ ولوېد او تر وروستي جنګيالي پورې يې د لاس ولستوني په جګړه کې ووژل شول. د عبدالصمد پرځای يې زوی «فيض طلب» د احمد شاه له خوا د پلار ځای ونيو.

احمدشاه چې د ګنجپورې خواته د مرهټيانو د اوردو د راتګ واورېدل، ژريې د لوی لښکر د خوځېدو لارښوونه وکړه، همدا چې د جمنا غاړې ته ورسېد، پوه شو چې عبدالصمد خان وژل شوی او ګنجپوره د دښمن لاس ته ورغلې ده، سره له دې چې د پشکال ورځې پاتې او سيند لارنه ورکوله، بيا هم په پوځي هوډ له ټولو سپرو کنډکونو سره پر اوبو ورګډ شو، او د ربيع الاول پر (۱۸) د «باکپت» په سيمه کې له سيند ه تېر شو، ورپسې يو زرو څلور سوه پيلان د توپنو، جګړه يزو زېرمو او پليو ډلو پر لېږدلو لګيا شول. سره له دې چې مرهټيان د جمنا له اوچتوالي ډاډه وو، خو بيا يې هم د سيند ښي اړخ ته څارونکې ډلې لرلې، احمدشاه چې له جمنا نه تېرېده د دوی له خوا ډزې پرې وشوې او د خيبر د دوو زرو سرتېرو مشر احمدخان خيبري له يو شمېر نورو سره ووژل شو او يو شمېر هم په اوبو کې ډوب شول.خو احمدشاه بې ډيل ځنډه مخ پر ګنجپوره روان شو.

مرهټيانو چې د احمدشاه راتګ واورېد، د پاني پټ خواته پرشا شول ځکه چې د هغه ځای ارتوالی د پوځي خوځښتونو ورو. سربېره پر دې مرهټيانو غوښتل چې له احمدشاه سره تر جګړې د مخه په هغه سپېڅلې چينه کې چې له پاني پټ نه اخوا د سرهند پر لار ده مذهبي لمبا وکړي، احمدشاه هم پردوی پسې وخوځېد او ترهغې چې پاني پټ ته رسېده، دښمن مورچلونه کېندلي او ټينګ کړي وو. د مرهټيانو مورچلې د پاني پټ د ګر

شمالي اړخ ته ځای پرځای او پینځه ویشت زره مخکښ سرتېري یې د « سنبالک » سرای په څو میلۍ کې تیارسی وو.

احمدشاه د دښمن د چمتووالي تر برسېرولو وروسته، د کندهار پوځي کوماندان « شاه پسند خان » ته چې د عبدالکریم په وینا ښکلی او غښتلی زلمی و، په خندا وویل:

« هو، شاه پسنده! ننني قراولي جګړه ستا په برخه رسېدلې، و به وینم چې څه کوې؟ »

شاه پسند له یوه پینځه زریز لښکر سره د سنبالک پر سرای ورغی: مرهټې ساتونکي یې مخې ته راپورته شول او شاه پسند پر یرغلیزه جګړه بوخت شو. ورغ لا پای ته رسېدلې نه وه چې مرهټیان مات او ووژل شول او شاه پسند په راستنېدو کې خپل سپاره په داسې ډول د احمدشاه له مخې تېرول چې هر یوه د دښمن یوه خولۍ په لاس کې نیولې وه.

احمدشاه وړاندې لاړ او خپل اوردو یې داسې ورځای ته ورکښته کړ چې هلته په آسانۍ سره د دښمن لاس نه وررسېده. دا ورځ چې احمدشاه د پاني پت پر ډګر په شپږ میله واټن کې د مرهټیانو پر وړاندې لښکر ځای پرځای کړ، د ۱۱۷٤ کال د ربیع الاول (۲۱) وه، تردې وروسته د جګړې تر پایه دواړه دښمن اوردوګان نېژدې دري میاشتې سره نښتي وو.

ددې مودې په لړ کې د احمدشاه جګړیزه وړتیا څرګندېږي، احمدشاه له شپېتو زرو پلیو او سپرو، توپونو او یو زرو څلورو سوو پیلانو سره غوښتل چې په یوه لرې هېواد کې پر یوه دري سوه او څلوېښت زریز اوردو، ګڼو توپونو او څو زرو پیلانو بریالی شي.

احمدشاه په دې جګړه کې پرته له هغه څه چې لرل یې، له یوې خوا یې هم د مرستې هیله نه وه او ځان یې په پردي هیواد کې لیده، خو دښمن په خپل هېواد کې جنګېده چې له پاني پته یې د هندوستان تر سهیلي بریدونو پورې اړیکه کرښې غځېدلې وې.

احمدشاه پرېکړه وکړه چې د دښمن د ستر اوردو اړیکه کرښې له هرې خوا نه د یوې لویې د برش میلي کړۍ په منځ کې غوځې کړي، ددغه هوډ له پاره یې له خپلو برسېرو ونکیو او ځریو ډلو څخه کار واخیست، لکه څه رنګه چې لیدل کېږي د احمدشاه د ځریو لړۍ او هڅې د ستایلو وړ دي، ځکه چې هغه د سبمې په منځ کې د دښمنې تول

خوځښتونه او د باندې د هغه اړیکلارې، څوا کونه او مرستندویې زیرمې ځانته برسیره او ښکاره کړې او بې ځنډه یې د سپرو دلو په مرسته چې په پرله پسې او شنلي توګه ګرځېدې؛ له منځه وړې دي. احمدشاه وکړای شول تولې هغه لارې چې د مرهټیانو اردو ته خواړه او وابښه پرې راوړل کېدل درسالې دلو په مرسته وڅارې، ان د دغو لارو یوه ارزښتناکه هغه یې چې د مرهټیانو د اردو شاته غځېدلې وه او د شمال له خوا د سرهند د هندوانو یوه مشر او د افغانانو کلک دښمن « آلاجیت » وابښه او خواړه پرې راوړل هم وتړله. همداراز د احمدشاه د سپرو دلو له خوا د ډهلي د پیسو خوندینه چې مرهټیانو غوښتل پاني پت ته یې یوسي د لارې په اوږدو کې برسېره او ونیول شوه او ټول سا تونکي یې ووژل شول.

مرهټیانو غوښتل چې کوماندان « ګوبند پنډت » له لسو زرو سپرو سره له جمنا نه اخوا ولېږي او پر اوده او روهیلکنډ، د شجاع الدوله، نجیب الدوله او نورو افغاني روهیله سردارانو تاتوبي » یرغل وکړي او د نوموړیو سردارانو اروا تر اغېز لاندې راولي چې د احمدشاه په اردو کې یې خدمت کاوه، نوموړی کوماندان لا د ډهلي په اتلس میلي « جلال آباد » کې کوز وسم شوی نه و چې د احمدشاه پېنځه زره سپاره د عطاګي خان کندهاري په مشرۍ د شپې په تیاره کې پرې ورشیوه شول او یو یې هم ژوندي پرې نه ښوو، سهار یې په پاني پت کې د « ګوبند پنډت » سر له تولو لوښیو سره احمدشاه ته راورساوه، په دې توګه د احمدشاه پوځي چارو د مرهټیانو لوی اردو په دار کې واچاوه.

مرهټیانو د سنبالک تر مخکښې قراول پورې یو ځل بیا د ربیع الاول پر (۲۸) د « داړې » جګړه پیل کړه خو په دغه وراندې تګ کې د سپاه سالار جانخان د سپرو له خوا چې ځانونه یې پټ کړي وو، له یوه اړخه ښه پاسته شول او د ګڼو مړیو تر پرېښوولو وروسته تر خپلو مورچلو پورې په منډه وتښتېدل. د ابراهیم خان ګاردي ورور فتح خان چې پر افغان کین اړخ یې ناڅاپي یرغل راوړی و، کلکه ماتې وخوړه او خپله ټوله وسله یې بایلله، تر دې وروسته مرهټیانو پر مخکتګ ته زړه ښه نه کړ او د دوې د اردو پر ښهلا بهلو برخو د افغاني تولیو ناڅاپي بریدونو خورا ډېر تاوان وراړاوه. عبدالکریم د دغو یرغلونو یوه بېلګه داسې را اخلي چې هره ورځ به یوه افغاني دله د دښمن مورچلو ته ورننوته او تر خونړۍ جګړې او تکړ وروسته به خپل اردو ته راستنېده، په دغه ترڅ کې

په ډېر ژوبل و تپيان شول او له سرونو او مخونو نه به يې وينې بهېدې، خو ټولو به په خندا افغاني سندرې ويلې او نڅا به يې کوله، دغې پېښې هندي نواب شجاع الدوله و بو گناوه او په ليدو يې سرتر پايه هېښ پاتې و.

په هر ډول، اورده ځنډ دواړه خواوې ستړې او د لانجې غوڅولو ته چمتو کړې، په ځانگړې توگه مرهټيان چې د لارو دبندېدو له امله خواړه او نور شيان ورته نه راتلل، همداوه چې د (١١٧٤) کال دجمادي الاخر پر (٦) د ١٧٦١ د جولاى پر (١٦) ټول افغاني او مرهټي ځواکونه د جگړې ډگر ته راووتل او د سهار له خوا دا جگړه چې د هند په تاريخ کې سارى نه لري پيل شوه. د مرهټيانو ښى اړخې لښکر د مرهټيانو د پاچاه د زوي «بهادر وسواس راو» ترمشرى لاندې مخ پرخوځېدو و او «سداشيوبهاو» د منځ ځواک افسرگڼل کېده. د مرهټيانو د يرغليز ځواک لومړى کرښې د دوزرو او څلور سوو پيل سپرو او د ابراهيم خان ترمشرى لاندې د څلوېښت زريز مسلمان گاردي لښکر ترشا د سبل غوندې راتويې شوې، چمتو توپونو يې هم پرله پسې اور ورونه پيل کړه، د مرهټيانو لښکر په خورا بشپړ تابه او چټکۍ مخکې راتلو، احمدشاه د ډگر پر يوه جگ ځاى ناست و؛ د جگړې ټول خوځښتونه يې څارل او د افغاني اوردو بې جوکې ځايونه يې د شاله خوا پياوړي کول. د احمدشاه لوى وزير شاه ولي خان له دوولسو شاهي زغره والو (کرښه ماتوونکي زلمي) سره، بدرگې ته ولاړو، افغاني دواړه خواوې د سپاه سالار جانخان و امير لښکر شاه پسند خان تر لارښوونه لاندې مخکې تلې، پوخ کښېنيو کرښو کې د نجيب الدوله او نورو افغاني مشرانو ترلاس لاندې روهيله افغاني ډلې او د نواب شجاع الدوله بهادر ډله وه، د احمدشاه درانه توپونه هم د دښمن د غنټ ځواک پر وړاندې د افغان وسله وال پوځ د ډاډ تکى و.

مرهټيان په بيړه راوړاندې شول او د روهيليانو يرغليزې ډلې د مرگ ژوبلې په زغملو او تمېدو اړ شوې. نجيب الدوله سردار عنايت خان له خپلو لسو زرو سرتېريو سره د مرهټي لښکرو په منځ کې کلابند او عطاگى خان کندهارى له خپل پينځه زريز لښکر سره پوړناشو. دا مهال نواب شجاع الدوله له خپلو لسو زرو جنگياليو سره کلک يرغل وکړ، سره له دې چې لاتر اوسه افغاني ښى اړخ پر خپل ځاى وخو د احمدشاه کيڼ اړخ د دښمن د ډېروالي او نه تمېدونکي پرمختگ له کبله بې جوکې او له منځه تگ ته نږدې وو

مرهټیان پرخپل بري بشپړ ویسا وو او لږ شبېې یې برلاسي ته پاتې وې. احمدشاه چې دا هرڅه لیدل دد ښمن له دغه ګوابښن پرمخټګه یې زړه ونه غوړځاوه او د مخنیوي له پاره یې شاهي زغره والو ډلو ته چې وروستی نوی ځواک او د ټول افغان پوځ پیاوړی کوونکی ګڼل کېده د مرهټیانو پر لښکر د یرغل بولنه ورکړه، دا هغه وروستی شېبې وې چې ټېر ېدې او د دواړو خواوو د ژوند و مرګ برخلیک ټاکل کېده.

احمدشاهي ډلو لکه څنګه چې هیله کېده، د مرهټیانو د لښکر مخه ونیوه او بریالی شوې چې منځ یې تر کلک اور لاندې ونیسي. په دې ډول چې لومړی یو زریز کنډک د احمدشاه له خوا دد ښمن د لښکر پرمنځ غورځنګ و یرغل ته واستول شو او مخته لاړ، همدا چې له ستر ګو لرې شو، دویم کنډک ورولیږل شو، په همدې توګه دوولس کنډکونه یو پر بل پسې لاړل، همدا چې لومړی کنډک خپل اوربل وکړ او لا یې بیا تو پکونه ډک کړي نه وو، دویم کنډک راورسېد او اوربل یې وکړ، همداسې دوولس واړه کنډکونه راغلل او یو ځای یې تر اور لاندې ونیو، ددغه پرله پسې اور له امله د مرهټیانو لښکر مشر شاهزی «بسواس راو» مړ او ملمه افسران یې تار و مار شول، ځکه د دښمن دښې لاس ټولې کرښې ولړزېدې. دې پېښې د څو شېبو په ترڅ کې دد ښمن نیم بریالی اوردو شاتګ ته اړ ویست. افغاني توپونو هم چې لا دمخه یې د جګړه یزو پیلانو کرښې او د مرهټیانو غوره منځي تر اور لاندې نیولي وو اوس یې د ژوبلو پیلانو په ستنولو او تېښته کې او د مرهټیانو د جبهې په شاتنیو کرښو کې د بلوا جوړولو له امله، له افغاني یرغلیزو ډلو سره ښه مرسته وکړه. دا مهال افغان اوردو په لوی یرغل دد ښمن کرښو ته ورننووت او د اورنیو وسلو جګړې خپل ځای غوځوونکیو وسلو او لاس لستوني جګړې ته پرېښوو. څو ګېنټې د پانیپټ په خونړۍ او پرغږ جنه سیمه کې د لمر تر ځلاندو وړانګو لاندې د تورو او چاړو له بریښنا او د وینو له سېل پرته بل څه نه لیدل کېدل، نیوونکي او نیول شوي، بریالي او ماتې خوړلي بې وینا او موسکا په ډاروتکې چوپتیا پر دغه ډګر د ژوند و مرګ له پاره، نه د بري له پاره ،جنګېدل، ددې ګرانې سوبې او بري جایزه د هندوستان ځلاند تاج و پلازو چې په پای کې دغه تاریخي ورځ د مرهټیانو په نه راستنېدونکې ماتې بشپړ شوه او د هندي او انګریزي مورخانو د وینا له مخې پانیپټ ډګر د دښمن په دوو سوو زرو مړیو پټ شو. (۱) د مرهټیانو پاتېشوني هم د افغاني

(۱) ابوظفر ندوي، ۱۸٤ مخ اود هند تاریخ. د مارسېډن لیکنه، د لندن چاپ، ۱۹۱۰ کال، ۱۳٦ مخ.

لښکرو له خوا تر ځلوریشتو میلوپورې وځارل او ووژل شول او د مرهټیانو له دوو، دریو نومیالیو، لکه: «هولکر» «شمشیرراو» او «ماجي سندیا» پرته بل څوک ژوندی پاتې نه شو، مرتضی حسین وایي: نور نو تر دېرو کلونو پورې مرهټیانو په ټول «دکن» کې ونه شو کړی چې داسې لښکر جوړ کړي، یوازې څو کاله وروسته د مرهټیانو مشرانو په ډېر کړاو ایله پنځوس زریز اوردو جوړ کړای شو.

دا د د پانیپت جګړه د افغان په تاریخي بري پای ته ورسېده او احمدشاه د جګړې دا تل په توګه د تاریخ پرمخ راڅرګند شو.

د پانیپت جګړې ولجې ډېرې وې، د پیسو پرخوندیینو سربېره پنځوس زره آسونه، دوه سوه زره غوایه، پنځه سوه پیلان او څو زره اوښان د احمدشاه لاس ته ورغلل. په دې جګړه کې په منځني شمېر هر افغان جنګیالي د دښمن له پنځو سرتېریو سره جنګېدلی، هر افغان د مخامخ لوري درې تنه وژلي او هرو دریو افغانانو یو دښمن یرغمل نیولی دی، خو د افغانانو مرګ ژوبله دومره لږ وه چې هیڅ مؤرخ یې لیکلو ته پام کړی نه دی، کېدای شي چې لسو زرو ته به نه رسېده.

له دوو ویشتو زرو یرغملو څخه یوازې ابراهیم کاردي چې مسلمان او د اسلام دښمنو: ووژل شو، پاتې نور وبښل شول.

احمدشاه تر جګړې وروسته ډیلي ته راغی او دا چې کړنلار یې د هند د اوسني بې جوکې حکومت پیاوړول وه ، نه د هغه نیول او خپلول، نو د هندوستان سلطنت یې د دویم عالمګیر زوی غازي پاچاه «ابوالمظفر جلال الدین عالي ګهرشاه عالم» ته چې په خپله په بنګاله کې و، ورپا وباښه او زوی یې «میرزا جوان بخت» د سلطنت نایب وټاکه. د هندوستان سیاسي او اداري چارې یې د هند د وزارت په رتبه او د «فرزندخان و هند رستم» په بلنامه «نواب شجاع الدوله بهادر» ته وسپارلې او پوځي چارې یې د هندوستان سپاه سالار «نواب نجیب الدوله بهادر افغان» ته پربښوولې.

اوس احمدشاه له یوه ستر کاره وزګار شوی و، همغه کار چې ډېرې خبرې پرې شوې، ځکه چې احمدشاه د کړاو په ګاللو، د افغان زلمیو د وینو په بلهارۍ او د هندوستان دولت د ګواښناک دښمن پر وړاندې د کېدونکې ماتې د بوږنوونکې پایلې له په پام کې نیولو سره د هندوستان ځلېدونکی تاج د مرهټیانو له لاسه اخیستی او وړیا یې پریوه

ناوړه سر اینبې و. دا چې ددې جګړې ګټوره پایله د افغانستان پر ځای هندوستان ته ورسېده، نو دا ستره جګړه د احمدشاه له خورا بې ګټې کارونو څخه شمېرل کېږي، له بلې خوا چې هاغه مهال احمدشاه په هند کې د اروپایانو راتلونکي ګواښونه اټکلولای نه شول، ځکه نو د بنسټیزو چارو د نه ترسره کولو له امله ګرم نه ګڼل کېږي. (۱)

احمدشاه نور په هند کې ځنډېدلی نه شو، نو مخ پر شمال وخوځېد، دا ځل په پنجاب

---

(۱) د افغان احمدشاه تر زېږېدو (۲۳۱) کاله وړاندې پر ۹۰۴هـ=۱٤۹۸ زېږدي کال د «واسکو ډیګاما» په نامه یوه پرتګالي ګرځندوی د «د ماغه امید» له لارې د هندوستان لوری ونېژاند او لومړی ځل دده د ملت ګام دهندستان پر خاوره کېښوول شو، وروسته په هند کې د پرتګال اقتصادي ځانګې هم وغځېدې. په ۱۱-۱۲ پېړۍ کې (د احمدشاه ژوند مهال) دغار کیانو، پرانسویانو او انګرېزانو هم د پرتګالیانو لار ونیوه خو پرانسویان په هند کې ترخپلو سیالانو مخکې شول. انګرېزان د ملکي الیزابت پر مهال یوازې سوداګر وو او د هند په بندرونو کې یې د ختیز هند د انګرېزي شرکتونو په نامه سوداګري تړونې پرانیستې. جهانګیر (۱۰۱٤-۱۰۳۷) د لومړي چارج په غوښتنه (۱۰۲۱هـ) د احمدآباد په «سورت» کې کمپنۍ ته د سوداګر خونې د جوړولو خوښه ورکړه.

اورنګزېب (۱۰٦۷-۱۱۱۸) د سورت و احمدآباد تر نیولو او د بمبیي تر ښار بندۍ وروسته کمپنۍ په کورنیو چارو کې نه لاس وهنې ته اړ کړه.

د افغان احمدشاه تر زېږېدو دوه کاله وړاندې کمپنۍ وکړای شول چې له محمدشاه (۱۱۳۱-۱۱٦۱) نه په ټول هندوستان کې د سوداګرۍ کولو خوښه ترلاسه کړي، له همدې نېټې نه کمپنۍ ترخپل اغېز لاندې سیمې پر درېیو برخو: کلکته، مدراس و بمبیي ووېشلې او په هره یوه کې یې له یوې سلاکارۍ دلې سره یو مشر وټاکه. د کلکتې مشر «لارډ کلایو» د هند له نوابانو او راجاګانو څخه غومره چې کېده د سوداګرۍ او ګمرک واک ترلاسه کړ، تر دې وروسته د هند په کورنیو چارو کې ورو، ورور د کمپنۍ لاس غځېده.

په پانیپت کې د احمدشاه ترجګړې پنځه کاله وروسته (۱۱۷۹) د بنګال نواب دخپل مشرتابه واک د یوې ټاکلې کالنۍ تنخا پر ځای کمپنۍ ته ورکړ. شاه عالم هندي هم د کالنۍ دري نیم میلیوني تنخا په بدل کې کمپنۍ ته د «بنګال، بهار و اوریسه» پرېښوول؛ ومنل. احمدشاه چې په کندهار کې د ناروغۍ پر کټ پرېوت (۱۱۸٦) د اودې نواب شجاع الدوله چې د احمدشاه له خوا د هند پر صدارت ټاکل شوی و د لارډ کلایو له ځای ناستي «وارن هیسټینګس» څخه یې د کترا افغاني ولایتونه په یوولس نیم میلیونه روپۍ وپېرودل او نومړي ځایونه یې د پوځي چلند له لارې تر وژلو او ړنګولو وروسته ونیول. پر ۱۷۸۹ کال د بریټانیا او پرانسې ترمنځ د «ورسای» تړون په هند کې د پرانسې د لاسوهنې مخه ونیوه، تر دې وروسته بریټانیا د هندوستان د لویو او ودانو سیمو، لکه: بنګال، بنارس، بهار، مدراس و بمبیي څښتنه شوه.

پر (۱۲۱٤) هـ کال کمپنۍ د «ټیپو» ترمړینې وروسته د میسور خاونده او نورې برخې یې پر ۱۲۳۳ کال ورپورې ونیلولې او له ۱۲۵٤ تر ۱۲٦۱ کال پورې ورو ورو د ستلج اخوا سیمې هم د کمپنۍ په ښتمنیو کې راغلې، په پای کې د هند تر بلوا ۷۳-۱۲۷٤ وروسته کمپنۍ د بریټانیا پارلمان له خوا ړنګه او د ملکې ویکټوریا د فرمان له مخې د هندوستان سلطنت د بریټانیا د تاج و پلاز یوه برخه شوه او ملکې د هند د امپراتریس بلنوم غوره کړ.

کې د احمدشاه له وېرې هيڅ ونه ننګېدل شو د چې سيکان په تېره بلوا ګر به په دې سېمه کې پاتې وي، ځکه چې ټولو ناخوښيو وداني پرې اېښې او په کونجونو کې پټ شوي وو، احمدشاه د دوي د چارو سمون ګاندې ته پرېښوو او چې لاهور ته راغی پنجاب حکومت يې «زين خان مومند» ته چې پوه سړی او جګړه ليدلی افسر و؛ ورکړ او په خپله سمدلاسه د پېښور و کابل پر لار کندهار ته لاړ. احمدشاه کندهار ته تر راتګ وروسته پلاز مېنې ته د نوي ښار د جوړولو په لټه کې شو، د ۱۱۷٤ کال په پای کې يې د اوسني کندهار ښار بنسټ کېښوو او پر همدغه کال يې شاهزی تيور د هرات ولايت د نايب الحکومه په توګه وټاکه او ولېږه.

# څلورډېرشم څپرکی

## نهم یون له ۱۱۷۵ تر ۱۱۷۷ کال پورې

### په پنجاب کې د سیکانو ګواښل (د شنې پانۍ جګړه)

### کشمیر ته لښکر لېږل او د هغه سمون

سیکان ډېر لانجه مار وو او د مرهټیانو له ماتې یې پند وانه خیست، ځکه همدا چې احمدشاه یې له سره تېر شو، بیا زاتول شول او بلوایې پیل کړه. داخل یې د آدینه بېګ پرځای آرسیک «جیساسنګ» د مشر په توګه وټاکه، دا سړی د سرهند د یوه مشر «الاجیت» له خوا چې له افغانانو سره یې ژوره دښمني لرله پیاوړی کېده، وروستی یاد شوی هماغه سړی دی چې د پانیپټ په جګړه کې یې له مرهټیانو سره د خواړو اوواښو ارزښتناکه مرسته کوله.

سیک مشرانو پرېکړه کړې وه چې په پنجاب کې سیکي دولت جوړ او پرېښوودروي، د «رنجیت ظفرنامې» لیکوال «امرنات» د خپل ستایلي په غوړمالۍ کې هڅه کوي چې د رنجیت د نیکه «چهرت سنګ» نوم په ناوړه توګه د دغه پاڅون د مشرانو په لیکه کې د تاریخ د اتل په توګه وښيي.[1]

سیکان د بلوا پر تلپاتې منځي «امرتسر» سربېره، د ستلج پورې غاړه او د سرهند

---

(۱) ظفرنامه، ۳ مخ

پر د گرونو هم راټول شوي وو چې وينا وو يې د کشمير پرهم مذهبانو هم اغېز وښيند. سيک وسله والو پرگنو چې له افغاني ساتونکيو نه لاهور ونيو او نايب الحکومه زين خان يې په «کوټ» بانده کې کلابند کړی و، د کشمير سيکانو ناپلوي وگړي هم په خپلو موخو کې گډ او پر سېمه پز حکومت يې يرغل وکړ. دا مهال (۱۱۷۵) کال د پنجاب و کشمير ټول لوی منځي د بلواگرو لاس ته ورغلي وو.

د سيکانو گواښل له پخوا رهيسې د احمدشاه په پام کې وو، همدا چې د بلوا غږيې واورېد، د تيارسئ لارښوونه يې وکړه.

هاغه مهال چې احمدشاه لاهور ته ورسېد د (۱۱۷۵) کال لومړی نيمايي پای ته نږدې و، دا مهال د سيکانو د غونډې ځای امرتسر او وسله وال ځواک يې په «چنداله» او «کوب» کې له افغاني افسرانو سره پر دېوالي جگړه بوخت و. احمدشاه پرېکړه وکړه چې د سيکانو پر منځي ناڅاپي کلک يرغل وکړي، نو ددې له پاره چې دده د يرغل په ترڅ کې افغاني هندي سرتېريو ته تاوان ونه رسېږي «ځکه چې هغوی هندي کالي اغوستل او په سختی يې له سيکانو سره توپير کېده» نو د ځانگړي منځوي په لاس يې افغاني افسرانو ته لارښوونه وکړه چې ددوی وگړي او هندي سرتېرې دې په خولی او پگړی کې يوه، يوه شنه پانه وتومبي چې يرغليز ځواکونه يې له بلواگرو سره توپير کړای شي، په دې توگه احمدشاه ناڅاپ پر سيکانو تينگ يرغل وروړ او کلک تاوان يې وروست، تښتېدليو هڅه وکړه چې سرهند ته پرشا شي، خو احمدشاه پرېکړه کړې وه چې کار يې يو مخيز کړي، نو له ستلجه په تېرېدو سرهند ته وراندې شو و په ۴۸ گېنټو کې يې ۱۳۵ ميله لار ووهله. سيکان د يوې ډلې په توگه د ورستی جوارۍ له پاره چمتو شول، احمدشاه لار ورنه کړه او درجب پر يوولسمه يې بريد پرې وکړ، د سيکانو اويا زريز پلي او سپاره لښکر پېنځه ويشت زره مړي ورکړل او پاتې وتښتېدل. تر دې وروسته چې احمدشاه ژوندی و بيا سيکانو د بلوا ځواک ومتره و نه مونده او دې ستغې جگړې ته يې «راگلوگارا - بې شمېره وژنه» ويل.

احمدشاه د هندوستان سپاه سالار نجيب الدوله راوغوښت او ددې سېمې د سمون ساتلو له پاره يې لارښوونه ورته وکړه او بشپړ واک يې ورکړ، همدا راز يې د پټيالې او سرهند حکومت يوه ځان پلوي سيک ته ورکړ او ويې غوښتل چې د دغه سياست له لارې

د بلواګرو څواکونو ترمنځ د دوی راولي او د نوروسیکانو د زړونو په لاس ته راوړ نه د پنجاب سمون وساتي.

دا بختور وغوره شوی سیک هماغه «امیرسنګ» نومی و چې څو کاله یې له وزیر شاه ولیخان سره خدمت کړی او افغاني روزنه یې لیدلې وه، ترهغې چې نوموړی ژوندی و له رهبنتینولی یې لاس وانه خیستان چې په لیکونو کې به یې د لاسلیک په ترڅ کې خپل نوم «امیرسنګ بامیزی» «د شاه ولي د تیره اړوند» لیکه.

په هر ډول، احمدشاه له سرهنده لاهور ته راستون شو: د پنجاب چارو بنستیز سمون ته څیرشو او هغه پوځي لښکر چې مخکې د نورالدین خان ترمشرۍ لاندې کشمیر نیولو ته لیږل شوی و، پر (۱۱۷۵) کال یې کشمیر بیرته له بلواګرو نه ونیو او اوس نورالدین حکومت پرې کاوه.

احمدشاه د (۱۱۷٦) کال پاتې ورځې هم په پنجاب کې د دغه سترولایت د چارو پر سمون او د سیکانو پر ګواښلو بوخت و. وروسته له هغې چې د چارو له بهیره ډاډمن شو، د نوموړي ولایت حکومت یې همـاغـه زین خـان ته ورکړ او په خپله پر (۱۱۷۷) کـال کندهار ته راوګرځېد. تر دې وروسته بیا احمدشاه پنجاب ونه لید او دا په ختیزو ولایتو کې دده وروستی یون ګڼل کیږي.

څینو مؤرخینو د مرهتیانو ترجګړې وروسته له ۱۱۷۵ کال تر ۱۱۸۲ کال پورې دوه ځلې پنجاب ته د احمدشاه تګ پرګوته کړی دي، خو له ۱۱۷۵ تر ۱۱۷۷ کال پورې د دغه یانه د یوځل تیاکلو په اړه د غلام حسین خبره رهبنتیني ګڼل کیږي[1] ځکه چې نوموړی مورخ د احمدشاه همهالی او د پانیپت ترجګړې وراندې په ډهلي کې و.

احمدشاه کندهار ته د راستنېدو په بهیر کې د یانه کرښه له ملتانه اسماعیل خان د برې ته وتیاکله، له هغه ځایه ګومل درې ته راغی او غزني ته ننووت. داځل دی د کلکې تودوخې له امله ناروغ شو او پرمخ یې دانې راوختې، یو شمېر سرتېري یې هم په لار کې د ډېرې تودوخې له امله مړه شول، سره له دې هم احمدشاه کندهار ته راورسېد او تر ۱۱۸۳ کال پورې په پلازمېنه کې د حکومت پر چارو بوخت و.

---

(۱) «سیرالمتاخرین» تاریخ، د غلام حسین لیکنه، د هند د نولکشور چاپ، دریم توک، ۹۲۰ مخ

# پینځه دېرشم څپرکی

## د (۱۱۸۱) کال لښکر لېږني

### د شمالي ولایتونو سمون، د افغانستان و بخارا برید تاکنه

له څه مودې راهیسې د باختر و تخارستان «مزار و کتغن» ولایتونو ځینې برخې د بخارا د پاچاه عبدالعزیز په نامه بلوا ته هڅول کېدې، نوموړی د بخارا د سلطنتي کورنۍ (جنیدیه کورنۍ) وروستی غړی و چې د یوې خپلچارې او ځان خوښې دلې له لاسه یې ماتې خوړلې وه. دا سړې د نوغي مغولو د «مانغیت» له څانګې څخه وو چې د «کبچاک» له ښېدیا څخه د بخارا جنیدې پاچاهانو ته راغلي او وزارت یې موندلی و، په پای کې دوی هم هماغه لویه چې له «شیبانیانو» سره یې بایللې وه له «جنیدیانو» سره یې هم بایلله. عبدالعزیز د بخارا تش په نامه پاچاه و اود افغانستان په شمال کې دا لومې د مانغیتیانو له خوا د عبدالعزیز په نامه غځول کېدې.

احمدشاه د شمالي ولایتونو د چارو د سمون له پاره پر ۱۱۸۱ کال وزیر شاه ولیخان له شپږو زرو سپرو سره ولېږه، ځکه چې نوموړی له پخوانه د شمالي سیمو په چارو پوهېده، دی چې بلخ ته ورسېد او چارې یې وکتې، د بخارایانو پرجګړه یز چمتووالي وپوهېد او له افغاني بریدونو نه د بخارا لورې ته تېر شو، سره له دې چې بخارایانو په «کرشي» کې د جګړې چمتووالی نېولی و، خو د سولې له لارې یې روغې جوړې ته غاړه کېښوده. د افغانستان دولت چې د افغاني سیمو له سمون پرته یې له آمو نه اخوا لاس نه غځاوه، نو ځکه افغاني وزیر هغه ترون چې د دواړو هېوادو ترمنځ یې آمو سیند برید ټاکه؛ ومانه او په خپله له بلخه بدخشان ته لاړ. د ۱۱۸۲ کال په پسرلي کې د کتغن و بدخشان تر سمون وروسته د کابل له لارې کندهار ته ورسېد. داځل شاه ولیخان د حضرت محمد (ص) سپېڅلې خرقه هم د بدخشانه فیض آباد ښاره کندهار ته راوړه چې تر ننه شته او ددغه ښار د مانیزو برکتونو د لامل په توګه ګڼل کېږي. (۱) «د یارلسم انځور کتلی شئ»

(۱) حضرت محمد «ص» ته ددې سپېڅلې خرقې اړوند والی ببله ځیرنه غواړي.

# شپږ د پرشم څپرکی

## لسم يون (۱۱۸۳) کال

### د خـوراسانِ ولايت سمون

په خوراسان ولايت کې د احمدشاه نايب الحکومه شاه رخ له څه مودې راهيسې د خپل مشر زلمی زوی ميرزا نصرالله تر اغيز لاندې راغلی و، نصرالله د پلار له ړوندوالي څخه ناوړه گټه واخيسته؛ يوځل پر (۱۱۸۱) کال د زند د کريم خان دربار ته د مرستې غوښتلو له پاره ورغلی و او بيا يې پر ۱۱۸۲ کال له کوردانو او نورو نه د پوځي ځواک د جوړلو تابيا کړې وه او غوښتل يې چې په خپله خپلواک حکمران شي. د تون و تبس حاکم عليمردان هم داسې خوب ليدلی و احمدشاه د دغو خپلسريو د مخنيوي له پاره پر ۱۱۸۳ کال د کندهار له اوردو سره وخوځېد او له هرات بيا ره د جام و لنگر پر لار د ولايت منځي «مشهد» ته وړاندې شو، نصرالله په «کوچان» کې له کوردانو نه د لښکر پر جوړولو لگيا شو او غوښتل يې چې دموخې د بشپړاوي له پاره په خپله کوردستان ته لاړ شي.

خو چې د ولايت له سر بريده يې د احمدشاه د راتېرېدو خبر واورېد په بېړه مشهد ته راستون شو، د شاه رخ دويم زوی ميرزا نادر چې هوښيار زلمی او پلار ته گران و د هغه تاو له امله چې مشر ورور يې تل له ده سره د پلار د ځای ناستي له کبله لاره، مشهد پرېښودو ته اړ شو، ده غوښتل چې د پارس له پاچاه کريم خان نه د مرستې غوښتلو په نامه څو ورځې د خپل ورور د واک له سيمې څخه لرې اوسي، خو د تون و تبس حاکم عليمردان وکړی شول چې هغه د لارې په اوږدو کې څو ورځې د مېلمه په نامه له ځان سره وساتي،

علیمردان هیله لرله چې میرزا نادر د خپلو ځای غوښتونکیو موخو له پاره لوښی کړي.

احمدشاه چې مشهد ته ورنېږدې شو او د جلوالي سپمه یې چې پر ۱۱۶۷ کال یې لښکر مېشت کړې وه بیا چاوڼې کړه، شاهرخ و نه کړای شول چې د زوی له خوښې پر ته د خپل پاچاه هرکلی او درناوی پرځای کړي. نصرالله هم د مشهد ورونه وتړل او ځان یې کلابند کړ. احمدشاه د یوالي جگړه پیل کړه، نصرالله د ډېر ژر پوه شو چې د پرگنو او پلار له خوښې پرته د یوه لوی پاچاه پر وړاندې سپین سترگي نه شي کړای، نوژر ځانسپارنې ته اړ شو.

د مشهد مشران احمدشاه ته راغلل او د نصرالله بښنه یې وغوښته، شاهرخ هم د نصرالله بښنه وړاندې کړه او خپله لور «گوهرشاد» یې شاهزي تیمور ته ورکړه. میرزا نصرالله خپل نومیالی او بیساري سور رنگی آس چې «غریب» نومېده او پنځلس زره روپۍ بیه یې وه احمدشاه ته ډالۍ کړ. د شاهزي تیمور دواده دود د احمدشاه په اوردو او مشهد ښار کې ترسره شو او نصرالله د احمدشاه له خوا «فرزند خان» بلنوم تر لاسه کړ.

دا مهال سپاه سالار سردار جانخان چې له اتو زرو سرتېرو او د بلوچستان نایب الحکومه سردار نصیرخان چې له شپږزرو سپرو بلوچو سره مخکې د احمدشاه له خوا د تون و تبس د سیمو د سمون او د هغه ځای د حاکم علیمردان د غوړ تاوونې له پاره لېږل شوي وو د تون و تبس، گلستانه، سلطان آباد او نورو تر سمونې او په کاخک کې د علیمردان او اتو سوو بلواگرو تر وژلو وروسته د مشهد لوېې چاوڼۍ ته راستانه شول.

احمدشاه د مشهد ولایت تر سمون وروسته، د خپل پخوانې چلند له مخې، یوځل بیا شاه رخ د خوراسان ولایت نایب الحکومه وټاکه[1] او د هغه بل زوی یزدان بخش یې د یرغمل په توگه له ځان سره روان کړ او په خپله چې د پارس هېوادونو د نیولو هیله یې نه لرله د (۱۱۸٤) د صفر پر (۸) یې کندهار ته د ستنېدو پرېکړه وکړه او سمدلاسه د هرات له لارې ورغی.

(۱) احمدشاه د خوراسان پر دویم یانه (۱۱۶۷) نورمحمد خان پښتون د شاه رخ نایب وټاکه خو څه موده وروسته یې راوغوښت او پرځای یې امیرخان ولېږه. بیا شاه رخ فریدون گرجی په دغه نامه ومانه. میرزا نصرالله چې رالوی شو فریدون یې وواژه او په خپله یې د هغه چارې واخیستې. نصرالله خان زرور خو ځان خوښی زلمی و، ځکه یې پلار ډېر ژر تري وځورېد او خپل دویم زوی میرزا نادر یې د هغه پرځای وټاکه، څه موده ددوو ورونو ترمنځ په شخړو کې تېره شوه. نصرالله د تیمور شاه مهال پر لوړیو پرته له دې چې د افغانستان دربار ته راشي پر (۱۱۸۸) کال یې له حسن علیخان کاجار نه مرسته وغوښته خو بریالی نه شو، بیا په شیراز کې د پارس پاچاه کریم خان زند ته ورغی او تر (۱۱۹۳) پورې هلته پاتې شو، وروسته اصفهان ته لاړ؛ شیراز ته ستون شو؛ مشهد ته راغی او له ورور سره یې جگړه وکړه دا ځل یې تر یوه کاله د پلار نیابت لاس ته راوړ، له ۱۱۹۸ کال وروسته یې بیا ځرک نه لگېږي خو میرزا نادر مشهد ته د احمدشاه تر دویم یانه او له نصرالله نه د پلار تر ځورېدو وروسته، څه موده د شاه رخ نایب و، خو چې له ورور ----›

تر دې وروسته چې احمدشاه ژوندی و بیا چېرته نه لاړ، ځکه چې جوکه یې ټیټېده او د تګ له پاره یې غوره لامل هم نه و.

-----›› سره یې په جګړه کې ماتې وخوړه، تېښته لاړ او په زور یې د هغه ځای د حاکم د علیمردان د زوی میرمحمد عرب خور واده کړه. نصرالله چې خبوشان ته لاړ نادر بېرته مشهد ته راغی او د پلار نایب شو. میرمحمد د خور د غچ اخیستنې له پاره مشهد ته راغی او په درو یې د نادر په غونډه کې ځان ځای کړ او هغه چې مهال ګوتو ته ورغی د خپلو څو سور ملګرو په مرسته یې نادر له څلورو خویندو او ورونو سره ونیو او تېښته یې وتښتاوه. تیمور شاه د دې پېښې له اورېدو سره سم میرمحمد ته کلک فرمان ورولېږه او وروسته یې د مددخان په مشرۍ یوه وسله واله ډله د میرمحمد د خپلو له پاره واستوله. مددخان په مشهد کې میرمحمد کلابند کړ خو د میرمحمد له خوا د بندي تر خوښتلو او د ډېرو پیسو تر ورکولو وروسته یې لاس ترې واخیست. او میرزا نادر یې راخوشی او هرات ته یې راوست. په هرات کې نادر د هغه ځای د نایب الحکومه او د تیمور شاه د زوی شاهزي محمود په چوپړ کې و، خو څه موده وروسته چې نصرالله مشهد ته راغی، دی هم بېرته لاړ او له وړور سره تر جګړې وروسته توس ته ورسېد، همدا چې وړور یې له مشهده ورک شو، بېرته ښار ته راننووت او د پلار د نیابت دنده یې پرمخ بېوله.

د زمانشاه ابدالي د پاچاهۍ پرمهال د پارس پاچاه آقامحمد خان کاجار پر ۱۲۱۰ کال خوراسان ولایت ته ننووت، شاه رخ یې د هغه له کهاله سره ونیو او مازندران ته یې واستاوه، خو شاه‌رخ د لارې په اوږدو کې مړ شو. میرزا نادر چې افغان کارکوونکي و هرات ته ورسېد. زمانشاه د دې پېښې په اورېدو پرغز واخیست، آقامحمد خان یې د یوه استازي« کدوخان بارکزي » په ورلېږلو و ګواښه او په خپله د لښکر پر چمتووالي لګیا شو. آقا محمد خان پارس ته د زمانشاه د لښکر غځونې انګازې ویورناوه او محمد حسین « کراګوزلویې » د سفیر په توګه د بښنې غوښتلو له پاره د زمانشاه دربار ته واستاوه او په خپله یې مشهد و نېشاپور ولایتونه خوشې کړل. زمانشاه نوموړی سفیر د یوه پوځي لاریون لیدو ته راوغوښت او بېرته یې ولېږه، میرزا نادر له خپل وړور میرزا عباس سره د افغانستان دولت له خوا د مختارالدوله شیرمحمد خان تر څنګ مشهد ته ولېږل شو او د نوموړي ولایت نایب الحکومه توب یې په لاس کې ونیو.

د آقا محمد تر مړینې وروسته (۱۲۱۲) چې فتح علیخان د هغه پر ځای کېناست ده هم یو ځل د خپل مخکښي آزمېښت تر سره کړ؛ تر نېشاپوره وراندې لاړ او ښار بند یې کړ. بیا زمانشاه طره باز خان د سفیر په توګه ورولېږه او له آقامحمد خان سره د پخوانې ترون یادونه یې وکړه او څرګنده یې کړه چې افغانستان د پارس نیولو هیله نه لري، نو پارس ته هم بویه چې پر مشهد و نېشاپور کار ونه لري، که نه نو د دواړو خواوو ترمنځ به د جګړې اور بل شي. فتح علي خان له نېشاپوره تېرېدو ته اړ شو. دا هغه مهال و چې د لوېدیځ سیاست ګام پر ګام له ختیځ و شماله په منځنۍ آسیا کې پرمختګ کاوه او په زور یې د نوموړو هېوادونو په سیاسي ژوندانه کې اغېز ښېنده.

د ناپلیون تګلارې، په لوېدیځ کې د لومړي الیکساندر د پلار امپراتور پاول لرلید او په ختیځ کې د شاه زمان پوځي چارو هند تر ګواښ لاندې راوستی و، د ناپلیون استازي کابل و تهران ته لېږل کېدل او سارجن ملکم هم پارس ته راغی، د پارس فتح علي شاه ومنله چې د افغانستان پر لوېدیځ برغل وکړي او شاه زمان د هېواد دننه بوخت وساتي. دا مهال د زمانشاه مشر وړور محمود چې په هرات کې نایب الحکومه و او د افغانستان د پاچاهۍ هیله یې لرله، ځان یې د پارس د سیاست غېږې ته واچاوه؛ پایله څرګنده وه، د کورنۍ جګړې اور بل او زمانشاه ړوند کړای شو او پر ځای یې محمود د افغانستان د پاچاهۍ تاج پر سر کېښوو. دوه کاله وروروسته فتح علي خان مشهد ولایت ته لښکر ولېږه او د لښکر کوماندان محمد حسین د مشهد تر څلور میاشتنۍ کلابندۍ وروسته د (۱۲۱۸) کال دوژې پر یوولسمه د ولایت منځې ونیو؛ افغاني نایب الحکومه میرزا نادر زنځیر تړلی تهران ته ولېږ شو او هماغلته ووژل شو؛ دوه زامن یې عباس و ابراهیم ووژل شول؛ درې زامن طهماسب، خالق ویردی او محب علي ړانده یې او بل زوی مصطفی یې بندي کړی شو « د دې کورنۍ د ژوند پېښو د لوستلو له پاره په ایران چاپې مجمل التواریخ کې د مدرس رضوي او زین العابدین لنلیکونه کتلی شئ »

په همدغه تیاره پېر کې مرو ولایت هم له لاسه ووت خو پارسیانو و نه ساتلی شو او د بخارا امیر ته یې ورکړ.

# اووه دیرشم څپرکی

## د احمدشاه مړینه

### د (۱۱۸٦) کال د رجب شلمه د جمعې شپه

احمدشاه پر ۱۱۷۷ کال له سرهند و پنجابه تر راستنېدو وروسته د لارو د ګڼ شمېر کړاوونو او پوځي ژوندانه له امله چې ده لاره: ناروغ شو. د لارې په اوږدو کې د هواد تودوخې کلکوالي ناروغي ورډېره کړه او پرمخ یې ګڼ شمېر دانې راوختې، چې کندهار ته راورسېد خورا بې جوګې او کمزوری شوی و، نور یې د زلمیتابه هغه ځواک وجوګه چې دده د یو ځلوېښت کلن منګ ور وه؛ نه لرله.

سره له دې چې احمدشاه تر دې وروسته نېژدې شپږ کاله له کندهاره بهر ونه خوځېد، خو خپله پخوانی روغتیا یې بیا و نه موندله، سربېره پر دې هم پر ۱۱۸۳ کال یو ځل بیا د هېواد د ننه مشهد ولایت ته لاړ او تر راستنېدو وروسته نور هم بې دمې شو، خو بختور و چې اوس یې ټول هېواد بشپړ تر لاس لاندې او کارکوونکي یې رښتیني او غښتلي وو او ده کړای شول چې په پلاز مېنه کې په هوسا ینه دمه وکړي. د احمدشاه وروستي ژوند کلونه تر ډېره په اداري او ودانیزو چارو کې تېر شول، دده له ښکلیو ودانیو څخه یوه دده زیارت دی چې په همدغو ورځو کې بشپړ شو.

پر ۱۱۸٦ د احمدشاه ځان ځواک نور هم راټیټ شو، مخکېنی ناروغي یې بیا راوګرځېده او د ډېرو افغاني مؤرخینو د څرګندونو له مخې «آکله» پرې ولګېده. د

کندهار د طبیبانو دارو درمل گټور نه وو، احمدشاه له ژوندانه نه لاس ومینځه او په هغه جرگه کې چې د دولت له لویو مشرانو او چارواکیو په گډون یې رابللې وه، د غونډې پام یې د شاهزي تیمور ځای ناستي ته راواړاوه او د هغه پر راتلونکې پاچاهۍ یې خپله خوښه څرگنده کړه، جرگې داحمدشاه وړاندیځ ومانه او له تیمور سره یې د بیعت ساتلو لوړه وکړه.

احمدشاه د همدغه کال پر لومړیو د اوبو او هوا بدلولو له پاره له خپلې کورنۍ سره د توبه غر خوا د کندهار ښار په ٤٥ میلۍ کې سهیل ختیځې سیمې «معروف» ته کډه یووړه، خو دا چې د برخلیک لاس دی په مرگ محکوم کړی و، هره ورځ یې هغې پورنوونکې شیبې ته ورنږدې کاوه. دا مهال تیمور له هراته د پلار لیدو ته راروان شو، خو احمدشاه دی د کندهار و هلمند ترمنځ د «واشیر» له سیمې بېرته هرات ته ستون کړ، وایې چې دا کار د وزیر شاه ولیخان په لمسانه وشو، ځکه چې دده زوم شاهزی سلیمان همدا چې د احمدشاه وروستی سلگۍ وې، ځای ناستي ته چمتو شوی و. شاهزی تیمور هم د پښتې په آر پوهېدلی او له هماغې ورځې یې شاه ولیخان له پامه بد شو. احمدشاه د رجب د میاشتې په لومړیو کې له هرڅه ولوېد او د هماغې میاشتې پر شلمه د جمعې پر شپه یې د ژوندانه پر یو پنځوسم کال تل ترتله له دې نړۍ نه کډه وکړه او یو ملت یې د خپل ویر پر تغره کیناوه.

ده خپل نیمایي ژوند د خپل هېواد و ملت د سیاسي بنستونو د پیاوړتیا په لار کې تېر کړی و او په پای کې یې د څه د پاسه څلوېښتو میلیونو وگړیو، شتمنو زړه‌ورو او پیاوړیو سرتېریو یو لوي هېواد تر شا پرې ایښی و. دده ستر پاچاه مړینه په ټول افغانستان کې لوی ویر و غم و چې هر افغان یې د زړه له کومي وډرداوه.

د احمدشاه جنازه له توبه غر نه کندهار ښار ته خواجه سرایا قوت راوړه او وروسته له هغې چې یوه شپه په شاهي ارگ کې و او د لمبونې او کفن چارې یې لوی وزیر شاه ولي خان وشاهزي سلیمان بشپړې کړې، د هغې پر قمینې او ښکلې مانۍ په لاندېنې پوړ کې چې احمدشاه د همدې موخې او سپېڅلې خرقې د ځای پر ځای کولو له پاره جوړه کړې وه، په ملي او رسمي درانه‌دود خاورو ته وسپارل شو، خو د احمدشاه تر مړینې وروسته سپېڅلې خرقه دې ودانۍ ته رانه وړل شوه او په هماغه پخواني ځای کې پاتې شوه چې تر ننه په کې ده.

# اته دېرشم څپرکی

## داحمدشاه ځای ناستی

احمدشاه تر خپلې کلکې او وروستي ناروغۍ پورې ځای ناستی ونه ټاکه، سره له دې یې هم خپل مشر زوی شاهزی تیمور د دولت په ارزښتمنو چارو کې ورګډاوه او روزلی کاوه، ځکه احمدشاه نه غوښتل هغه دود چې تل مشر زوی د پلار ځای ناستی ګڼي: ناپلی پرېږدي، که څه هم چې دغه ځای ناستي ترڅان غوره او ور، خو کشر ورور ولري.

احمدشاه چې د بیا روغېدو هیله له لاسه ورکړه د تېر مهال د ساتلو له پاره یې په غیابي ډول جرګې ته تیمور د ځای ناستي په توګه ورو پېژاند او لکه مخکې چې وویل شول، هماغلته د غونډې له خوا ومنل شو.

دا مهال شاهزای تیمور د هرات نایب الحکومه او د مروې او مشهد ولایت چارې یې څارلې. پرځای یې د احمدشاه دویم زوي شاهزی سلیمان په کندهار پلاز مېنه کې و او د پلار تر مړینې وروسته د خپل خسر وزیر شاه ولیخان په مرسته د افغانستان پرپاچاهۍ کېناست. د وزیر پلویان وایي چې شاه ولیخان په دې اړه د سملاسي سمون له ساتلو پر ته بله موخه نه لرله او همدا چې تیمور پاچاهۍ ته راپورته شو: وروسپارل شوه، خو دا یوه استدلالي څرګندونه ده، چې لاسوند کېدای نه شي. په هر ډول، نوموړي وزیر سلیمان د هېواد د پاچاهۍ ورګانه خو هغه نه غوښتل چې دغه مقام په وینو وساتي، ځکه همدا چې سلیمان وپوهېد چې تیمور د هرات له اوردو سره راخوځېدلی او ولس هم د احمدشاه مشر



نمبر۱۳ مقبرہ تیمور شاہ ۔ چار باغ کابل

زوی غواړي، په خورا سره سینه له دې غوښتنې څخه پرشا شو او د کورنی لانجې د اور د مخنیوي له پاره یې مشر ورور ته غاړه کېښووه.

تیمور شاه هم تر هغې چې ژوندی و د خپل ورور د غه پتمن چلند یې هېر نه کړ، خو په خواشیني سره ښایي وویل شي چې د شاه ولیخان «هاغه بیساري افغاني وزیر» په اړه یې خورا ناوړه بې باکي وکړه او هغه یې له خپلې رښتیني کورنی سره د «انکو» او «اسلامي» نومیو په لاسونو چې د وژونکیو دنده یې اخیستې وه؛ ووژه.

تیمور شاه د دغه وزیر پر وژلو سربېره چې د پلار ښی لاس یې و، سپاه سالار سردار جانخان هم چې د احمدشاه بل لاس ګڼل کېده؛ له کاره وغورځاوه.

تیمور شاه نېږدې (۳۲) کلن و چې په کندهار کې یې د پاچاهی لوی تاج پر سر کېښوو او د غه اوچت مقام یې دوه ویشت کاله وساته. د تیمور شاه مهال تاریخي سپړنې د دغه کتاب له دندې څخه بهر دي، ښایي یوازې همدومره وویل شي چې تیور شاه عیاش وهوساغوښتونکی پاچاه و او د خپلې پاچاهی په ترڅ کې داسې تېروتنې ترې وشوې چې پر افغانستان باندې یې د هغه د زامنو په پېر کې توري وربخې راوستې. هېره دې نه وي چې تیمور شاه د خپلې دوه ویشت کلنې پاچاهی په لړ کې زیار ویوست هغه هېواد چې له پلاره ورته پاتې و، بشپړ خپل زوی ته پرېږدي. تر هغې چې تیمورشاه ژوندی و پرې یې نه ښووه چې افغانستان درون تاوان وګالي، په دې لاړ کې یې د بخارا د اوزبکو، د پنجاب د سیکانو او د کشمیر و ملتان ه بلواګرو پروړاندې ګڼ شمېر جګړې وکړې او په ټولو کې همدی بریالي هم و.

تیمورشاه چې پلازمېنه یې له کندهاره کابل ته راوړې وه، تر مړینې وروسته هماغلته د کابل د چارباغ په نومیالی ودانی کې ښخ شو. «څوارلسم انځور کتلی شئ»

پای

# اخځ


۱- محمد حیات خان، «حیات افغاني» دلاهور چاپ ۱۸٦٥ زکال.
۲- شیرمحمد خان گنډاپوری «خورشید جهان» د لاهور چاپ ۱۸۹٤ زکال.
۳- «تذکرة الملوک».
٤- نواب حافظ محبته خان «ریاض المحبته».
٥- سلطان محمد خان خالص «تاریخ سلطاني» د بمبیي چاپ ۱۲۹۸ هـ.
٦- محمد سعادت خان «خصایل السعاده» د لکهنو چاپ ۱۸٥٥ زکال.
۷- محمد قاسم فرشته «تاریخ فرشته».
۸- بایزید روښان «حالنامه».
۹- اخون درویزه ننګرهاری «تذکرة الابرار و الاشرار» د پېښور چاپ ۱۳۰۹ هـ.
۱۰- مؤبد شاه زرتشتي «دبستان مذاهب» د بمبیی او کانپور چاپ ۱۲۹۲ هـ ۱۹۰٤ زکال.
۱۱- میرزا عباس خان اقبال «تاریخ عمومي» دویم چاپ تهران ۱۳۰٥ ل.
۱۲- ابن محمد امین ابوالحسن گلستانه «مجمل التواریخ بعد نادریه» د لندن چاپ ۱۸۹٦ کال. او د مدرس رضوي او زین العابدین له لمنلیکونو سره د تهران چاپ ۱۳۲۰ ل.
۱۳- میرزا محمد مهدي استرآبادی «جهانگشای نادری» د بمبیي چاپ ۱۳۰۹ هـ.
۱٤- محمد حسن «مرأت الاشباه» د اودي چاپ.
۱٥- منشي عبدالکریم علوی «تاریخ احمدي».
۱٦- سید جمال الدین افغان «تتمة البیان فی تاریخ الافغان» د مصر چاپ ۱۹۰۱ زکال.
۱۷- سارجن ملکم «تاریخ ایران» د هند چاپ ۱۹٦۸ ز.
۱۸- «کابل کالنی» ۱۳۱٥ ل کال د کابل چاپ.
۱۹- محمد حسن آزاد «نگارستان فارس» د لاهور چاپ ۱۹۲۲ ز.
۲۰- سرپرسي سایکس «تاریخ مختصر ایران» د اصفهان چاپ.
۲۱- امیر عبدالرحمن خان «تاج التواریخ» د بمبیي چاپ ۱۳۲۲ هـ.
۲۲- «د کابل مجلې دویمه ټولګه» د کابل چاپ ۱۳۱۱ ل (افغان درهندوستان «غبار»)
۲۳- میرزا حسین فروغی «تاریخ ایران» د پارس چاپ ۱۳۱۸ س.
۲٤- منشي غلام حسین «سیرالمتأخرین» د لکهنو چاپ.

۲۵- «د کابل مجلي لومړی ټولګه» ۱۳۱۰ ل (د «غبار» لس ليکني).
۲٦- «لومړنی کابل کالنی» ۱۳۱۱ ل (تاریخچهء افغانستان« غبار »).
۲۷- «مکتوبات شاه فقیرالله علوی» د لاهور چاپ.
۲۸- «د کابل مجلي ټولګه» ۱۳۱۷ ل.
۲۹- ابوالفضل« تاریخ بیهقی» د کلکتې چاپ ۱۹٦۲ز.
۳۰- میرزا فیض محمد خان« سراج التواریخ» د کابل چاپ.
۳۱- مرتضی حسین بلګرامی« حدیقة الاقالیم» د لکهنو چاپ ۱۲۹٦ هـ.
۳۲- جرجي زیدان« تمدن الاسلام» د قاهرې چاپ ۱۹۰۲ ز.
۳۳- «تاریخ سیستان» د تهران چاپ ۱۳۱٤ ل.
۳٤- «شمس النهار» د افغانستان لومړنی ورځپانه ۱۲۹۲ س.
۳۵- احمد علي خان کهزاد« رسالهء مسکوکات افغانستان درعصر اسلام» د کابل چاپ ۱۳۱۹ ل.
۳٦- امرنات« ظفرنامهء رنجیت» د لاهور چاپ ۱۹۲۷ز.
۳۷- قاسم علي« محاربهء کابل و کندهار» د اګرې چاپ ۱۲۷۲ هـ.
۳۸- سیدالطاف علي« حیات حافظ رحمت خان» دبواني چاپ ۱۹۳۳ز.
۳۹- سید ابوظفرندوي« تاریخ مختصر هند» د هند چاپ ۱۹۳٤ ز.
٤۰- منشي غلام حسین« سیرالمتأخرین» د نولکشور چاپ.
٤۱- History of Afhanistan from the earliest period to the oputbreak of the war of 1878 By colonel G.B Mallson, C.S.I London 1878.
٤۲- History of india for Junior classes By E. Marsden B.A London - 1910.
٤۳- Afghanistan from Darus to Amanullah By L.T General Sir George macmann London 1929.
٤٤- The Encyclopaedia of islam London - 1927.
٤۵- A Grammer of the pukhto (pushto) By captain H. Raverty London.

# د انځورونو نيوليک

١- داحمدشاه بابا د مور «زرغونې انا» قبر.
٢- افغان احمدشاه بابا.
٣- داحمدشاه بابا امسا، جګړه يزه خولۍ او مټ بند.
٤- رنګ شوی پخوانی کندهار ښار.
٥- د شيرسرخ زيارت، پر پاچاهۍ باندې د احمدشاه د تاکل کېدو ځای.
٦- د احمدشاه پريګړې غنم وړی تومبل کېږي.
٧- د کندهار په کوکران کې د ميرويس نيکه زيارت.
٨- د احمدشاه مهال دودېزې وسلې.
٩- د احمدشاهي کندهار نوی ښار.
١٠- په نوي ښار کې د احمدشاه شاهي جومات.
١١- په کندهار ښار کې د احمدشاه، بابا زيارت.
١٢- د احمدشاه مهال د لرګين کارۍ يوه بېلګه.
١٣- په کندهار کې د حضرت محمد (ص) د سپېڅلې خرقې ودانۍ.
١٤- د کابل ښار په چارباغ کې د احمدشاه د ځای ناستي «تيمورشاه» قبر.

# ويي پانگه

آر- اصل، رېښه، بېخ، قاعده
آزموینه- امتحان، آزمون.
اتل- قهرمان، پهلوان.
اند- فکر، نظر
اډه- چاوڼی، پوځي قراگاه، گارنیزیون.
اروا- روح
اړنک- شک
اړیکی- رابطه، تماس
اغوستن- کالی، جامی، لباس
اغېز- تاثیر
الواک- نظر، فکر، ایډیا
اټکل- پیش بیني، لرلید
اوتا- وضع، حالت، شرایط
اوسار- ځرگند، ښکاره
اوډل- پیل، ترتیب
اورنی- آتشین
اوم- خام، کچه
بډ- سیال، مخالف
بدرگه- معیت، مؤکب
برسېره- ښکاره، مکشوف
برید- حد، پیل، حمله، هجوم
بڼه- قیافه، شکل، څېره
بلنوم- لقب
بولنه- لارښوونه، کومنده
بوختیا- مشغولیت
بېلگه- مثال، نمونه، ماډل، سمبل
تم- ولاړ
تاړاک- یرغل، حمله،
پانگه- پیسې، سرمایه، کاپیتال
پایله- نتیجه، نجور
پرغز- قهر، غصه، غضب

پرگنې- تودې، خلک، بشري ډلې
پنه- اوبول، خړوبول
پلاز- تخت
پلازمېنه- پای تخت
پلارناستی- جلوس
پنه- خړوبول، ابیاری
جوړښت- تشکیل
جوکه- انرژي، قبوه، کارمایه.
جوگه- وړ، ماوی، قابل، مطابق، طبق حال
ختیځ- شرق
ختېز- شرقي
خوندیینه- خزانه، میانی، کیسه، سیف
ځای ناستی- ولی عهد، جانشین
ځان سپارله- تسلیمېدل
څری- جاسوس، مخبر
څخه- له، از
څېنې- بعضی
ځواک- قوت، قدرت
چارواکی- لوی مامور
چوپړ- خادم، نوکر
چاوڼی- گارنیزیون، اډه، قرارگاه
څارن- مراقبت، ناظر
څرک- نښه، علامه، درک، پته
دروه- خیانت، چگی، دوکه، غوولو
دریغ- منبر، ستېج، محراب
دمنی- تفریحی
ډال- سپر، مانع
رمبی- جنډه، بیرغ
روږدی- آوخته، عادي
ریونده- مایل، سرشېب، نیمه راست
زباب- ثابت، متنه



زوکړه- تولد، زیږېدل
زېرمه- ذخیره، ډیپو، تحویلخانه، ستوک.
ژمن- متعهد
ژمنه- تعهد، قول، پیمان،
ساری- مثال، بېلگه، نمونه، ماډل
ستونزه- مشکل، تنگخه
سربرید- سرحد
سربېره- علاوه
سکالو- موضوع
سمون- نظم، تنظیم، تامین
سنځیا- یو ډول زهر
سیال- رقیب
شاهزی- شاهزاده
شاهزی- شاهزادگی
شولت- ذوق، سلیقه
ښکیلاک- سیطره، نفوذ، استعمار
ښیندل- غورځول، شنل، اچول
گواښ- خطر، آسیب، ضرر
لاریون- مارش
لامل- علت، سبب
لرلید- دورنما
لویدیځ- غرب
لویدیز- غربي
لېږدونې- انتقالات
متره- غیرت، قدرت، توانایی، وسه
منځ- قرارگاه، زړه، مرکز
منځوی- میانجي ریبار، متوسط، رابط
منځی- مرکز، زړه، قرارگاه، نقطهء ثقل
منگ- عمر
موخه- هدف
نغتی- پټ، ناڅرگند.
ننگیرل- احساس
نیاو- عدل
واټن- فاصله
ورتیا، قابلیت، توانایی
وړ- قابل، مطابق، طبقحال، مستحق، مساوي
وېر- ماتم- غم
وړاندیځ- پیشنهاد
وړاندیز- پیشنهادي
وگړي- پرگنې، خلک، تودې، انساني ډلې
هممهالی- همعصر، همزولی
هینس- هک، حیران، تعجب
هیښنده- عجیب، بې ساري، شگفت
یرغل- حمله، هجوم.
یرغمل- اسیر، بندي
یون- سفر، حرکت، تگ

ستا د عشق له وینو ډک شوه ځګرونه
ستا په لاره کښې بایلي ځلمي سرونه

که هر څو مې د دنیا ملکونه ډیر شي
زما خو هېر نشي دا ستا ښکلي باغونه

د رقیب د ژوند متاع به تار په تار کړم
چه په تورو پښتانه کا ګذارونه

تا ته راشمه زړګی زما فارغ شي
بې له تا مې اندېښنې د زړه مارونه

د دهلي تخت هېر وم چه را یاد کړم
زما د ښکلي پښتونخوا د غرو سرونه

•

که تمامه دنیا یو خوا ته بل خوا یي
زما خو خوښ دي ستا تش ډګرونه

"احمد شاه" به دغه ستا قدر هېر نکا
که ونیسي د تمام جهان ملکونه

لیکونکی: عزیز الدین وکیلي پوپلزی ۱۳۴۲

دانش کتابخانه - دهکی نعلبندی
قصه خوانی - پشاور تیلفون: 2564513